دحمل ۱۹ :ـدرو غتیا ورځ دهیواد په فرهنګی اوطبی‌تو لنو کښی استقبا ل شوه
دحمل ۲۰ دافغانستان اوهند دد وستی دټولنی هیئت چه دد غه ټولنی در ئیس ښاغلی محمد نوروز په مشری دحمل ۸ څلورمه نیټه دهند دحکومت په بلنه هغه‌هیواد ته‌تللی‌وبیر ته کا بل ته را غی
دحمل ۲۰ :ـ دکابل راډیو دهنرمندانو هیئت دهندپه جمهوریت‌کښی‌دیولړ کنسرتونو دجوړولو نه‌وروسته پرون خپل هیوادته ر اغی
دحمل ۲۳ :ـ دکابل‌دښار دعمومی پلان په پراختیا او دکو ر ونو جوړ ولود همکا ری موافقت لیك دشوروی‌اتحاد دلوی سفیر اوښاغلی ملکیار ترمنځ لا س لیك شو .
دحمل ۲٤ :ـ ښاغلی مسجدی دقندهار دولایت دکر هڼی لەمدیر سره دهغه ا لو تو نګو ملخانو‌په‌ضد دمجادلی‌په‌باب‌چه دخارج څخه‌دافغا نستان‌خاوری‌ته راغلی‌دی‌خبری‌ا تری‌و کړی.
دحمل ۲۵ :ـ ښاغلی سردار محمد داؤد صدراعظم ملی شو ری ته ولاړ وروسته له‌هغی چه دلو مړی پنځه کلن پلا ن مو فقیتو نوته‌یی اشاره وکړه ددوهم پنځه کلن پلان دا ساسی کرښو په‌باب ئی چه‌دملی شوری دغور لاندی دی مفصل تو ضیحا ت ور کړل .
دحمل ۲۷ :ـ دهیواد دوهم انکشافی اواقتصادی پلان دملی شو ری په‌غونډه کښی‌دراپو په ا تفا ق تصو یب شو .
دحمل ۳۰ :ـ شاهانه‌ذات دهیواد دلوید یځوسیمو او انکشافی اوعمرانی چارود دملاحظی لپاره دالوتکی په ذریعه قندهار ته‌ولاړ او دورځی په‌پنځو بجو اوپنځودقیقوقندهارته ورسیدل او دعسکری گارد په احترام اودتو پونو په ډزو او دډیرو خلکو په گر مو احسا ساتو سره استقبا ل شو ل
دثورا ول : رادیو تیلفونی مخابره‌دقندهار ، مزار شر یف ،غزنی‌پلخمری‌دمرکزونونه دامریکا اواروپاد هیوادونوسره شروع شوه .
دثور ۲: همایونی‌معظم اعلیحضرت په‌لښکرگاه کښی‌در خام‌دډبری نوی فابریکه پرانیستله اودپښبی دعلاجی ددستگاه دود ا نی دبنا لومړنی ډبره یی‌کیښوده .
دثور ۳ : همایو نی معظم ءاعلیحضرت ددر و ښان دو یا لی سربند اوشما لا ن پرو ژه معاینه کړله.
دثور ٤ : همایونی معظم اعلیحضرت فراه ته‌ورسید .
دثور ٤: دمالیی‌دوزارت اداری معین د ملی شوری دتدوین اوقوانینودچارودکمیسیون سوالو نوته توضیحات ورکړل . دکرهڼی دچا رو اودفواید عامی اودکجکی‌دبند اوارغنداب موضوع اودملی دفاع دوزارت دچارو کمیسیون دنښانواومدالونو ۷٤ مادی دتعدیل‌موضوع ترکتنی اوتدقیق لاندی ونیوله .
دثور ٥ : همایونی معظم اعلیحضرت وهر ات شین ډ ندته ورسیدل .

دثور ۶: پەهرات کښې دښهر یاری ذات موکب پە عسکری رسم تعظیم د تو پو نو پەډزو دګلو نو پەشیندلو اودغەځای دزرګونو خلکو لەخوا پە ډیرە خوشحالی استقبال شو .

دثور ۷ : هما یونی معظم اعلیحضرت دهرات دجامع جومات ودانۍ او د هغې مربوطی چاری معاینە کړی او دالوتکو میدان یی هم وکوت .

دثور ۸ : - زمونږ محبوب پادشاه اوبی‌تە ورسید . همایونی معظم اعلیحضرت دنوی سرك کار ترتورغوندی پوری معاینە کړ . دتکی پەلارە کښی یی دسرك جوړونی تخنیکی دستګاوی دهغی دمختلفو ځانګو سره اودتور غوندی لاری جوړونی عمومی ډیپو دښهریاری ذات ترمعاینی‌ځغه تیرشول .

دثور ۸ :- دهمایو نی معظم اعلیحضرت لە حضور ځخەداعلیحضرت میروهیتو نەدزیږیدنی دکالیزی پەمناسبت دمبارکی تلګرام توکیوتە مخابرە شوی‌دی .

دثور ۹ :- دهمایونی‌معظم اعلیحضرت لەحضورڅخەدهالیند دملکی‌علیا حضرت جولیانا دزیږ دنی پەمناسبت دمبارکی تلګرام هاګ تەمخابرەشوی‌دی .

دثور ۹ :- دملی شوری‌دقوانینو دتدوین کمیسیون‌دملکی‌مامورینو اوعسکری‌منصبدارانو د، ارائی‌دتثبیت داصولنامی دپروژی پەباب‌ځپله فیصلە صادرە کړە .

دثور ۹ :- پەجلال آباد کښی دبطرولو و روغنیاتودذخیرو کولو ودانی پرانتسیل شوه

دثور ۱۱ :- همایو نی معظم اعلیحضرت دیرمه شپه پەاوبە کښی تشریف در لود .

دثور ۱۱ - والاحضرت‌شهزادګی‌بلقیس‌دقابلګی‌دښوونځی بوولسمی‌دوری‌فارغ‌التحصیلانو تەبری لیکونە وویشل .

دثور ۱۷ :- شاهانەذات دغه ځای دناځاپی بارانو نو لە امله خپل تـګ غورا تو ته پریښود .

دثور ۱۱ : - دملی شوری دبودجی اومالی چاروکمیسیون د۱۳٤۰ کال‌دمالیی دوزارت دنقاعد دشپږووروستیو میا شتو دعا یدا تو اومصار فو دبو دجی پە باب خپلە فیصلە صا در کړە .

دثور ۱۳ :- دابن‌سینا نری کلینیك دابن‌سینا دروغتوی پەځنګ‌کښی پرانتسیل شوه .

دثور ۱۳ :- دکرهڼی دو زارت‌نطاق‌دکراچی دراډیوداخبر یوځی‌بی‌اساسە اوغلط وبالە چەوا یی دملخانو ډول دافغانستان لەخوا پەکویټە کښی‌زراعتی زمکی متاثری‌کړی دی .

دثور ۱٤ :-همایو نی معظم اعلیحضرت پەهرات کښی دمولینا جامی ارا مګاه تە ولاړ اودهغه روح‌تە یی دعاوی‌وکړی . وروستە لەهغی‌یی دعرایضو پەکتلوشروع‌وکړە .

دثور ۱۵ :- ښاغلی صدراعظم دغوری دبریښنا اودسمنتو دفابریکی‌دپرانیستلو اودځینی عرفانی موسسو دمعاینە کولو پەغرض دقطغن ولایت تەولاړ .

دثور ۱٦ :- ښاغلی سردار محمدداؤد صدر اعظم دقندوز اوقزل قلعه دسرك‌دکارجریان اودقزل قلعه دبندر دودانیو کاروکوت .

دثور ۱٦ : همایونی اعلیحضرت بالا مرغاب ته ورسید . دبالا مرغاب مامور ینو اومعاریفو دهمایونی دات موکب ته دشاه دوستی د احساساتو په ښکار کولو سره هرکلی ووایی .

دثور ۱٦ : ښاغلی سردار محمد داؤد صدراعظم پلخمری ته نیږدی دغوری د بریښنا او سمنتو فابریکه پر له پسی سره پرانیستلی .

دثور ۱۷ ــ دافغانستان دشاهی دولت اودایران دشاهنشاهی دولت ترمنځ ترانز یټی موافقت لیك پرون دملی شوری دمالی او تجارتی کمیسیون په غونډه کښی و کتل شو .

دثور ۱۸ :ــ زمونږ گران پادشاه میمنی ته ورسید .

دثور ۱۸ ، دهمایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه دچکوسلواکیا دملی ورځی په مناسبت دمبارکی تلگرام پراگ ته مخابره شوی دی .

دثور ۱۹ : ـ همایونی معظم اعلیحضرت میمنی دجامع جومات ، دهوائی ډگر دقالینو جوړولو اوډبرو جوړولو کارمعاینه کړ اودافغانی سری میاشتی دنماینده گی دودانی ډبره یی کیښوده .

دثور ۱۹ :ـ افغانی سری میاشتی تراوسه پوری دنړی دهیواد و نو مصیبت ز پلو سره ددوه سوو پنځوسو زرو دالرو څخه زیات کومك کړی دی .

دثور ۲۰ : دهمایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه دایتالیا دجمهور رئیس په حیث دجلالتماب انتو نیوسنئی په نامه دمبارکی تلگرام روم ته مخابره شوی دی .

دثور ۲۱ : دهمایونی معظم اعلیحضرت موکب اندخوی ته ورسید.

دثور ۲۱ : دهمایونی معظم اعلیحضرت موکب په اندخوی کښی دتوپونو په ډزو سره بدر قه شو ددایرو رئیسانو ،مخورو ، شاگردانو او د هغه ځای نورو زیاتو خلکو دخپل گران پا چا هرکلی وکړ .

دثور ۲۲ : ـدهمایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه دهند دجمهور رئیس په حیث دجلالتمآب رادا کرشنان دټاکلو په نسبت اودښاغلی سردار محمد داؤد صدراعظم له خوا دجلالتمآب ذاکر حسین په نامه دمبارکی تلگرامونه هند ته مخابره شوی دی .

دثور ۲۳ :ـ دهمایونی معظم اعلیحضرت موکب مزارشریف ته ورسید .

دثور ۲٤ : همایونی معظم اعلیحضرت دلوی اختر مونځ د شاه ولایت مآب د روضی په جامع جومات کښی ادا کړ .

د ثور ۲٤ : ښاغلی صدراعظم داختر مونځ دشاه دوشمشیره علیه الرحمه په جومات کښی ادا کړ .

د ثور ۲۵ : په افغانستان کښی به په راتلونکو پنځو کلو کښی ۲۰٦٦ کیلومتره عمومی سړك په عصری ډول جوړ شی اوهوایی مواصلات به هم زیاته پراختیا ومومی .

د ثور ۲٦ : همایونی معظم اعلیحضرت ورمه شپه په مزارشریف کښی تشریف درلود.

د ثور ۲۷ : د همایونی اعلیحضرت موکب سمنگانو ته ورسید . په خلم او سمنگانو کښی د ښار او اطرافو نرو اوښځو زړو او ځوانانو او وړو په ډیره خوشحالی او احساساتو پــه ښکاره کولو د خپل گران پاچا هرکلی و کړ .

د ثور ۲۷ : د زیاتو تخنیکی مرستو پروتوکول د افغانستان او شوروی اتحاد تر منځ لاسلیك شو .

د ثور ۲۸ : همایونی معظم اعلیحضرت د غوری د بریښنا اوسمنټو فابریکه او د هغې ملحقات معاینه کړل .

د ثور ۲۸ : د همایونی اعلیحضرت له حضور څخه (۵٤) تنهافغانی صنعت کاران‌اوعمله د صنعت د مډال په اخیستلوسرلوړ ی شوی‌دی .

د ثور ۲۹ : د همایونی معظم اعلیحضرت د رسمی مسافرت موده پای ته‌ورسیدله . وړمه شپه شاهانه ذات د آجر په دره کښی تشریف درلود .

د ثور ۳۰ : دمطبوعاتو مستقل رئیس دکتورسهیل د شوروی اتحاد د کلتوری رو ابطو د ټولنی د رئیس په بلنه شوروی اتحاد ته ولاړ .

دثور ۳۰ ، د افغانستان او شوروی اتحاد د دوستۍ ټولنی هیئت دتاریخد ټولنی درئیس دکتور عبدالرحیم ضیایی ، دمطبوعاتو دکورنیو خپرونولوی‌مدیرښاغلی‌محمدابراهیم عباسی د اصلاح دن شراتی موسسی آمر دکتور محمود حبیبی په ګډون دافغانستان اوشوروی‌اتحاد ددوستۍ ټولنی په بلنه هغه هیواد ته‌ولاړ.

دثور ۳۱ : همایونی معظم اعلیحضرت د ولایاتو اواعلی حکومتونو داجتماعی ، عمرانی عرفانی چارو د کتلو نه وروسته په خیر سره شاهی ارګ ته تشریف راوړ .

د جوزا ۲ : ښاغلی پژواك د نیویارك په پوهنتون کښی د یوی وینا په ترڅ کښی د افغانستان د بیطرفۍ سیاست توضیح کړ .

د جوزا ٤ : د همایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه‌دارجنټاین دملی‌اختر په‌مناسبت د هغه هیواد د جمهور رئیس‌جلالتماب ګیدو په نامه بوینس ته د مبارکۍ تلګرام مخابره شوی‌دی . همدا راز د همایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه داردنیی هاشمیی د دولت د خپلواکۍ د ورځی په‌مناسبت د اعلیحضرت حسین په نامه د مبارکۍ تلګرام عمان ته‌مخابره شوی دی .

او د یوګوسلاویا د جمهور رییس جلالتماب مارشال‌جوزوف‌بروزتیتود زیږدنی‌دکالیزی په مناسبت‌دتوموړی په‌نامه‌دهمایونی‌معظم اعلیحضرت له‌حضور څخه‌د مبارکی‌تلګرام‌بلګراد ته مخابره شوی دي .

د جوزا ۵ : د هنګری مختار وزیر خپله اعتمادنامه دهمایونی‌معظم اعلیحضر ت‌حضورته تقدیم کړه .

د جوزا ۵ : دنیمی‌شپی په دوه نیموبجوحضرت باری‌تعالی دهمایونی اعلیحضرت مشرزوی والاحضرت احمدشاه ته زوی ورکړ .

د جوزا ۹ : دمامورینو د جزاء او جرایمو اصولنامه دملی‌شوری دعدلی‌چارود کمیسیون له‌خوا تر غور او کتنی لاندی ونیول شوه .

د جوزا ۱۰ : د ایتالیا یو اقتصادی شپږ ویشت کسیز هیئت دهغه هیواد دپارلمان دغړی پروفیسر ( لورنزو اسیکرو ) په مشری کابل ته راغی .

د جوزا ۱۱ : په مسکو کی د افغانی لوی سفارت لهخوا د خپلواکی د گټلو د ... الیزی په مناسبت یوه لویه میلمستیا شوی وه .

د جوزا ۱۲ : دفیض اباد مربوط دیفتلی په کلی کښی دهلکانو یو دهاتی ښوونځی پرانیستل شو .

د جوزا ۱۲ : د ملی شوری د قوانینو دتدوین د چارو کمیسیون د بندیانو د مکافات او مجازاتو د اصولنامی د ۱۷ مادی د تعدیل په باب خپله فیصله صادره کړه .

د جوزا ۱۲ ؛ دقطغن د ولایت مربوط د ارچی دو یالی تونل چه ۱۲۰ زره جریبه ځمکه یی د خړوبولو لاندی ده پرانیستل شو .

د جوزا ۱۳ : د همایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه د نوی هجری کال د راتگ په مناسبت د جلالتمآب جمال عبدالناصر او جلالتمآب جنرال ابراهیم عبود په نامه دمبارکی تلگرامونه قاهری او خرطوم ته مخابره شوی دی .

د جوزا ١٤ : په ملی شورا کښی د مالی د وزارت د تقاعد د خزینی د ۱۳٤۰ کال د وروستیو شپږو میاشتو د عایداتو او مصارفو بودجه تصویب شوه .

د جوزا ١٥ د همایونی اعلیحضرت په اراده د والاحضرت شهزاده احمدشاه پـه زوی د شاهانه ذات مبارك نوم ( محمدظاهر ) کیښو د شو .

د جوزا ١٥ : د همایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه د جلا لتمآب دکتور سکارنود زیږیدنی دکالیزی په مناسبت دنوموړی جلالتمآب په نامه د مبارکی تلگرام جکارتا ته مخابره شو .

د جوزا ١٤ : د دولتی دایرو او وزارتونو د ۱۳٤۱ کال عمومی بودجه دملی شوری د مالی او بودجی چارو دکمیسیون لهخوا د غور او کتنی لاندی و نیول شوه .

د جوزا ١٦ : د مزارشریف په ملکی روغتون کښی د راډیـو تـرا بی دستگاه په کار واچول شوه .

د جوزا ۱۷ : د گردیز د ولایت مربوط ددری په کلی کښی د هلکانو یو دهاتی ښوونځی د هغه ولایت د پوهنی د مدیریت لهخوا پرانیستل شو .

د جوزا ۱۸ : دافغانستان حکومت دهغه نظری ملاتړ کوی چه دزروی وسلو داستعمال د بندولو په منظور دیو بین‌المللی تړون دهغوندی په پای کښی لاس لیك شی .

د جوزا ۱۹ : د ملی شوری د قوا نینو د تدوین کمیسیون دافغانستان با نك د اساس نامی درو مادی د تعدیل په باب خپله فیصله صادره کړه .

د جوزا ۲۰ : د مالی د وزارت معین او ددغه وزارت دبودجی عمومی‌مدیر ښاغلی‌ضیایی د ۱٤۳۱ کال‌د وزارتونواودولتی وایرود عمومی بودجی په باب د‌ملی شوری‌مالی بودجی چارو د کمیسو ن پوښتنو ته ځوابونه ورکوی .

د جوزا ۲۰ : په یونان کښی د افغانستان لوی سفیر په حیث د ښاغلی ریشتیا اگر یما ن دیونان ددولت له خوار اورسید .

د جوزا ۲۱ : د کابل په‌دربار کښی‌دگانا دلوی‌سفیر په‌حیث‌دجلالتماب (ستکوبورانتونی) اگر یمان چه د همایونی معظم اعلیحضرت له حضور څخه غوښتل شوی وصادر شو .

دجوزا ۲۲: دافغانی سری میاشتی ټولنی دالجزایر مجاهدینوته پنځه زر ه ډالره بسپنه ورکره.

دجوزا۲۳: په دی ورستیو وختو کښی دلوگر په محمد اغه کښی د معلمانو یو کور س جوړ شوی.

دجوزا۲٤ :ولاحضراتو شهزاده محمدنادر شهزاده شا ه محمو د او شهز ا ده محمد داود دشهیدانو دامام ددهاکولو په غونډه کښی‌گډون‌وکړ

په وروستو دوه کلو کښی د هلو مو یو هنځی په و سیله د افغا نستا ن پنځه زره دوله معلومواو مجهو لو حشراتو حیوانی‌کلیسو جوړ شوی دی .

د جوزا ۲٦ : پارلمانی هیئت دسالنگ دسرك جوړولو د چارو دکتلو نه وروسته بیرته کابل ته راغی .

د جوزا۲۸: په افغانستان کښی د ملاریا دورکولو لپاره دیونیسف اجرائیه اداری پنځه پنځوس زره ډالره تصو یب کړل .

د جوزا ۲۹ : دصنعت هغه‌مدالونه چه دهمایونی‌معظم اعلیحضرت له حضور څخه‌دلویدیځ عمومی لین د آ مر یت د یو شمیر منصبدارانو او کا ر یگر و لپاره منظور شوی و د هغو مستحقو کسانوته وسپارل شول .

دجوزا ۳۰ : د افغانستان حکومت تصمیم نیولی دی چه دملگرو ملتو د۲۵زرو ډالرو قرض اسنادو پیری .

د سرطان اول : علیا حضرتی معظمی ملکی دورسره کسانو سره یرون ماز دیگر په پنځو بجو په خیر ، عافیت او صحت سره بیرته کابل ته تشریف راووړ . همایونی معظم اعلیحضرت والاحضراتو گرانو شهزاده گانو او والاحضرتی شهزادگی بلقیس د معظمی ملکی د هرکلی او استقبال دپاره په هوائی میدان کښی تشریف درلود .
د ۱۳٤۰ کال ددلو په دیارلسمه نیټه دعلاج دپاره اروپاته تللی وه .
د سرطان ۳ : د صنعت هغه مدالونه چه د معظم همایونی اعلیحضرت د حضورنه دهرات دولایت قالینو او بدو نکو ښځو ته صادر شوی وو دنائب الحکومه د کفیل ښاغلی واحد په واسطه ورمه ورځ مستحقو ښځوته ورکړ شول .
د سرطان ٤ : دافغانستان او پولیند د ملکی هوا نورد ی هیئتو خبری وروستنی مرحلی ته رسیدلی دی ، پرون هم د تړون په موادو باندی د هیئتو نوتر منځ خبری وشوی .
د سرطان ٥: د صنعت هغه مدالونه چه د معظم همایونی اعلیحضرت له حضورنه د پټرو لو دپلټنی دریاست پنځلسو تنو کارگرانو ته صادر شوی وو پرون د شبرغان داعلی حکومت د کفیل ښاغلی دلاور لهخوا هغوی ته ورکړل شول .
د سرطان ٦: د ځینو نشراتی موسسو تخنیکی انکشاف دپاره دالمان داتحادی جمهوریت او دافغانستان د پاچاهی دولت ترمنځ د تخنیکی مرستی د تړون د ضمیمی موافقت لیک پرون د مطبوعاتو دمستقل رئیس دوکتور سهیل اودالمان دلوی سفیر دکتور شمید هوریکس ترمنځ لاسلیك شو .
د سرطان ٦ : دملت نمایند گانو دملی شورا په ورمه ورځنی عمومی غونډه کی دافغانستان دپاد شاهی دولت او دایران دشاهنشاهی دولت ترمنځ دترانزیت موافقتنامه تصویب کړه .
د سرطان ۷: دافغانستان او پولیند ترمنځ د فضایی حمل ونقل موافقت لیک پرون ماز دیگر ښاغلی عبدالکریم حکیمی دافغانستان دملکی هوائی دریاست کفیل او ښاغلی ژانزویرژفسکی دپولیند دمواصلاتو دوزارت دهوا نوردی دمدیر لهخوا لاسلیك شو .
د سرطان ۸ : هغه فرمانونه چه د همایونی معظم اعلیحضرت لهحضورنه دافغانی سری میاشتی د ټولنی دنوو موسسو اوافتخاری غړو په عنوان صادر شوی وو ، پرون دموسسی داداری رئیس ښاغلی اختر محمد په واسطه هغوی ته ورکړل شول .
د سرطان ۹ : دپوهنی هغه مدالونه چه د همایونی معظم اعلیحضرت له حضورته دقندز او نهرین دمنځینو ښوونځیو او دبغلان او حضرت امام دتجربوی ښوونځی دمعلیمینو دپاره صادر شوی وو ورمه ورځ د قطغن دولایت دنائب الحکومه ښاغلی صدیقی په واسطه هغوی ته وسپارل شول .
د سرطان ۱۰ : دملی شورا دخارجه چارو کمیسیون په خپله پرونی غونډه کښی دافغانستان او دمتحد عربی جمهوریت د حکومتو ترمنځ دتجارتی اوتادیاتو موافقت لیک ترغور لاندی ونیو .

دسرطان : ۱۱ دبین المللی مخدره ادویی دواحد میثاق پروژه چه دملی‌شورا دروغتیا پوهنی او مطبوعاتو دچارو په‌کمیسیون کی ترکتنی او څیړنی لاندی‌ده ، دغه‌کمیسیون په‌دغه باره‌کی خپله فیصله صادره کړه ، اود دارالانشا له خوا دیاث غور د پاره دملی شورا او‌قو انینو دتدوین دچارو کمیسیون‌ته‌وسپارله شوه .

د سرطان ۱۲ : دترافیکو داصولنامی د۲۰ مادی تعدیل ، دملکی مامور ینو دمحاکماتو دتشکیل داصولنامی د لومړی مادی تعدیل او د مامورینو ددارائی دثبت داصولنامی پروژه چه‌پخوا دملی شورا له خوا تصویب شوی وه پرون د اعیانو دمجلس له خوا هم تائید شوه .

دسرطان ۱۳ :دالجزایر دآزدی په‌مناسبت دهمایونی معظم اعلیحضرت له‌حضورنه‌پرون دآزاد الجزایر دحکومت دصدراعظم جلالتمآب بن یوسف بن خده په عنوان یو تلگرام مخابره شوه .

دسرطان ۱۷ : په‌مسکو کی‌دوسلو کمولو اوسو لی‌په‌کانگرس‌کی‌افغانی هیئت چه‌مشر یی دپوهنی دوزارت تدریسی معین داکتر محمد انس دی د چارشنبی په ورځ مسکو ته ورسید .

دسرطان ۱۹ : دافغانستان بانک داساسنامی د(۱۹ )مادی تعدیل اودملیکه‌تقسیماتو داصو لنامی نوی ضمیمه دملی شورا دعمومی غونډی پرونی آجنداوه چه‌تصویب شوه .

دسرطان ۲۰ : والاحضرت شهزادگی بلقیس د نرسنگ د ښوونځی د ۱۳٤۰ کال دفارغ التحصیلانو دیپلومونه پرون مازیگر دمستورانو په‌شفاخانه کی وویشل .

دسرطان ۲۱ : دافغانستان د پادشاهی دولت او د ایران د شاهنشاهی دولت تر منځ دترانزیت موافقت نامه ، چه‌دوزیرانو د عالی مجلس او د ملی شورا دمجلس د تصویب نه وروسته داصولی مراتبو دتیرولو دپاره داعیانو مجلس ته‌رسیدلی‌وه دغورا‌ودقت‌څخه‌وروسته تائید او تصویب شوه .

دسرطان ۲۱:د۱۳٤۱ کال‌په‌مطبوعاتی جوائزو کی‌څلور ویشت کتابونه په‌پښتو، فارسی او انگلیسی‌ژبو کاندید شوی دی .

دسرطان ۲۲ :ښاغلی سردار محمد داؤد صدراعظم پرون مازیگر دمرکز او ولایاتو دمعارف دشاگردانو هنری ننداړتون دنجات په‌لیسه‌کښی پرانست .

دسرطان ۲۳ : دفرانسی دملی جشن په مناسبت د همایونی معظم اعلیحضرت له‌حضوره د فرانسی د جمهور رئیس جنرال شارل دوگول په عنوان پاریس ته دمبارکی‌تلگرام‌مخابره شویدی ، همدغه راز دعراق دملی ورځی په مناسبت د همایونی معظم اعلیحضرت له‌حضوره دعراق‌دمجلس‌السیاده دمشرنجیب‌الربیع په‌عنوان دمبارکی‌تلگرام‌بغدادته مخابره شویدی .

د سرطان ۲۵ : د استقلال د لیسی د ۱۳٤۰ کال د بیلو ، بیلو څانگو ددوه و یشتو تنو فارغ‌التحصیلانو بری لیکونه پرون مازیگر د والاحضرت‌شهزاده محمدنادرله‌خوا وویشل

شول ، په هغه‌ټولنه کی چه‌په دغه مناسبت د استقلال په لیسه کی شوی‌وه دپوهنی دوزارت اراکینو ، د فرانسي د سفارت شارژ دافیر اوددغی لیسی داخلی او خارجی استادانو گډون درلود .

د سرطان ۲٦ : ټاکل شویده د ایران اعلیحضرت شا هنشاه‌به‌د همایونی‌معظم‌اعلیحضرت په بلنه افغانستان ته مسافرت وکړی . د ایران اعلیحضرت شهنشاه به د اسد په څلورمه ورځ کابل ته تشریف راوړی او په‌افغانستان کښی به‌دخپلی استوگنی په‌موده‌کی دهمایونی معظم اعلیحضرت گران میلمه وی

د سرطان ۲٦ : دملی شورا په‌پرونی عمومی غونده‌کښی دبندیانو دمکافاتو اومجازاتو داصولنامی داوولسمی مادی تعدیل تر غور لاندی و نیول شو او د خبرو او بحث‌نه وروسته د رأیو په اتفاق تصویب شو .

د سرطان ۲۷: د مخدره دواگانو په باب کی د بین المللی واخد میثاق اصولنامه چه له څو مودی را ایسته دملی شورا د قوانینو د تدوین د چارو کمیسیون کی ترغورلاندی‌وه کمیسیون د هغی په باره کی خپله فیصله صادره کړه ا و د عمومی مجلس د غور دپاره‌ئی‌د ملی شورا دارالانشاء ته وسپا رله .

د سرطان ۲۷ : د هسپانیی د دولت د ملی اختر په مناسبت د همایونی معظم اعلیحضرت له حضورنه د هسپانیی د دولت د رئیس جلالتمآب جنرا ل فرانسسکو فرانکو په عنوان د مبارکی تیلگرام مادرید ته مخابره شوی دی .

د سرطان ۲۸ : دافغانستان دحکومت او دولسی چین د جمهوریت دحکومت تر منځ د مالونو د بدلولو او تادیاتو پروتوکول پرون مازیگر په پنځو بجو د تجارت د وزارت په سالون کښی لاسلیك شو دافغانستان د تجارت د وزارت له‌خوا د خارجی تجارت‌دلوی‌مدیر دکتور محمد اکبر عمر او د ولسی‌چین د جمهوریت د حکومت له‌خوا د هغه‌هیواد د لـوی سفارت تجارتي مستشار ښاغلی (لی) دغه پرو توکول لاسلیك کړ .

د سرطان ۲۹ : په وچه کی دمحاط شوو هیوادو د ترانزیتی اسانتیاوو په باره کـی‌د افغانی هیئت دپیشنهاد تسوید چه دمالی اوبولیویا له خو اتائید شو دقاهری په‌جرگه کی د وروستی اعلامیی د جز په حیث تصو یب شو .

د سرطان ۳۰ : دهمایونی معظم اعلیحضرت له حضور نه د بلژ یك د ملی‌اختر‌په‌مناسبت د هغه هیواد د پاچا اعلیحضرت لومړی بودوان په نامه بروکسل‌ته دمبارکی تلگرام‌مخابره شویدی .

د سرطان ۳۱ : د همایونی معظم ا علیحضرت له‌خوا د پولیند د اولسی جمهوریت دملی ورځی په مناسبت د هغه دولت د جمهور رئیس جلالتمآب‌الکزاندرزواتسکی په‌نامه وارساته دمبارکی‌تلگرام مخابره شویدی.

**داسد لمړی:** دهما یونی معظم اعلیحضرت له خوا د متحد عربی جمهوریت د ملی ورځی په مناسبت د متحد عربی جمهور رئیس جلالتمآب جمال عبدالنا صر په عنوان قاهری ته د مبارکی تلگرام مخا بره شوی دی .

**داسد لمړی** :داقتصا دی رشد د مـلـا ئلو په جرگه او اقتصادی رشد په باره کښی دقاهری دا علامیی په تسو ید کښی افغا نی هیئت فعاله برخه واخستله . دافغا نی هیئت رئیس وو یل چه دافغا نی هیئت اسا سی وینا د جرگی دتو جه وړو گرځید له د جرگی دراپورتر وظیفه افغانی هیئت ته وسپا رل شو ه .

**دا سد ۲** :د ملی شورا په پر و نی عمو می غونډه کی په نیو یا رک کی د بین المللی ۱۹٦۱ کا ل دمخدره دواوا حدمیثاق تر کتنی لاندی ونیول شو . ددغه میثاق پیشنهاد چه درو غتیا دوزارت له خوا وړا ندی شو یدی اود و زیرانو دعالی مجلس له تصو یب نه وروسته ملی شوری ته رسید لی دی پخوا دصحی چارو کمیسیون اود قو انینو دتد و ین په کمیسیو ن کی تر تد قیق او کتنی لاندی نیو ل شو ی و و .

**داسد ۳** : دملی شوری دقوا نینو دجوړولو دچارو کمیسیون په خپله پرو نیغونډه کی د ملی تقسیما تو داصولنا می ددوه دیر شمی مادی د حذ فو لواو دیو ه نوی بیل فصل دوضع کو لو په بر خه کی دداخله وزارت پیشنهاد تر غور او کتنی لاند ی ونیو دخار جه چا رو کمیسیون هم غونډه وکړه اودافغانستان دشا هی حکو مت او دیو لیند دجمهور ی حکو مت تر منځ یی دبین المللی هوایی حمل و نقل موا فقت نامه تر کتنی اوتدقیق لاندی ونیو له .

**دا سد ٤** :دملی شورا دقوانینو دتد وین کمیسیون په پخوانی سلسله کی په خپله پرونی غو نډه کښی دملکیه تقسیما تو داصولنا می د۳۲مادی د حذ فو لواو ددغه قانون دپاره دیو ه جلا فصل دو ضع کو لو مو ضوع وکتله او دشوری دارلانشا ته یی وسپارله چه ځینی بر خی یی دمر بو طی مر جع له خوا تکمیل او بیا بیر ته کمیسیو ن ته ولیږ له شی .

**دا سد ٥**: دایران شا هنشاه اعلیحضرت محمد رضا پهلوی داعلیحضرت معظم هما یونی په بلنه پر ون دورځی په یولسو بجواوپنځه لسودقیقو کابل ته راورسید.له معظم هما یونی اعلیحضرت دخپل گران میلمه د هر کلی دپاره په یو لسو بجو اوپنځو دقیقو هوای میدا ن ته ور سید او مخصو ص شا هی کمپ کښی ځی مو قع ونیو له دایر ا ن داعلیحضرت شاهنشا ه الوتکه پیدا سی حال کښی چه دیو سیل جت الو تکو له خو ا یی مشا یعت کیده دکا بل په فضا کښی ښکا ره شوه معظم هما یونی اعلیحضر ت ،دکا بل فا تح والا حضرت مارشال شاولیخان غازی ،ښا غلی سر دار محمد داود صدر اعظم دملی شوری رئیس . دصدارت عظمی معاونانو، دتجار ت وزیر دهر کلی دکمیټی رئیس ښا غلی شیر زاد ، دکا بل والی، کا بل ښاروال دخار جه چارو دوزارت معین ،د سلطنتی تشریفا تو رئیس او په کابل کښی دایران لوی سفیر، کوم وخت چه دا یران شا هنشا ه له الو تکی څخه ښکته کیدهٔ دد وی هر کلی وکړ .

**د اسد ۷**: دهما یو نی معظم اعلیحضرت له حضور نه دایران داعلیحضرت شاهنشاه دملگر و دپا ره دغه ښا نو نه منظور شوی او دوی ته وسپارل شول .

دا یران د خا رجه چارو وزیر ښا غلی عباس آرام ته دسردار اعلی نښان، دایران داعلیحضرت شهنشاه مخصوص ډاکټر ډگر جنرال دوکتور عبدالکریم ایازی ته دسردار عالی نښان ، په کابل کې دایران لوی سفیر ښاغلی ذوالفقاری ته دسردارعالی نښان د ځمکنیو قواؤ یاور تورن جنرال غلام رضا ازهاری ته دستوری اومړی نښان ، دایران دشاهنشاهی دربار ملکی یاور دتشریفاتو معاون دوکتور حسین قلی لقمان اد هم ته دستوری لومړی نښان، په کابل دایران پهلوی سفارت کی مختار وزیر ښاغلی همایون سمیعی ته دستوری لومړی نښان، دهوایی قواؤ نظامی یاور برید جنرال حسن طوفانیان ته دستوری دوهم نښان. دتهران پوهنتون دمعقول او منقول پوهنځی رئیس استاد بدیع الزمان فروزا نفر ته دمعارف اوله درجه نښان ، دعمومی هواپیمایی داداری معاون اودمهرآباد دهوایی میدان رئیس ښاغلی فروزان ته دستوری دریمه درجه نښان ، درمزآمر ښاغلی حسن نجم آبادی ته دستوری دریمه درجه ښان .

دغه راز دایران داعلیحضرت شاهنشاه له حضورنه ښاغلی سر دار محمدداؤدصدر اعظم ته دلومړی تاج نښان دتجارت وزیر دهرکلی د کمیټی رئیس ښا غلی غلام محمد شیر زاد او په تهران کی دافغانستان لوی سفیر ښا غلی محمد عثمان امیر ته دلومړی هما یو ن نښان ، دخارجه وزارت سیاسی لوی مدیر ښاغلی نوراحمد اعتمادی اوتورن جنرال محمد علی ابوی اودسلطنتی تشریفاتو رئیس ښاغلی محمد علی ته دهمایون دو همه درجه نښانونه او دخارجه چارو دوزارت دتشر یفاتو معاون ښاغلی محمد امین اعتمادی اودسلطنتی تشر یفا تو معاون ښاغلی غلام عثمان علومی ته دهمایون دریمه درجه نښانو نه ورکړی شویدی .

داسد ۱۰ :ــ دمعظم همایونی اعلیحضرت له حضورنه د سویس دکنفدراسیون دملی ورځی په منا سبت ددغه کنفد را سیون درئیس جلالتمآب پول شودت په نامه بر ن ته د مبا رکی تلگرام مخا بره شوی دی .

داسد ۱۱ :ــ دایران د شاهنشاه اعلیحضرت محمد رضاپهلوی الوتکه داسد د۱۰ ورځی په ۹ بجود خوا چه رواش د هوائی ډگر نه دتهران خواته والوته .

داسد ۱۳ : دننگرهار دکانال د ریا ست دتخنیکی کورس دبریښنا اوترکاڼی له څا نگو نه پنځوس تنه فا رغ التحصیل شوی اوپه بیلو بیلو څانگو کښی په کارمقررشوی دی .

داسد ۱٤ : د ملی شوری دمالی او تجارت دچا رودکمیسیون دغوښتنی پهاثر پرون دورځی په یوولسو بجو دمالیی د وزا رت معین ښاغلی محمد انورضیایی ملی شوری ته ورغی اودتصدیو اوپه موسسو کی ددولت دگډو ن داصولنامی دپروژی په باب کی دکمیسیون پوښتنو ته ځواب ورکړ اود پروژی دځینو موا دوپه شا وخوا کی دکمیسیون د غړواود مالیی د وزارت دمعین ترمنځ خبری وشوی .

داسد ۱۵ ــ د هغه خبرپه تعقیب چه پخوا د شوروی اتحاد د صدراعظم جلالتمآب نیکیتا خروسچف په بلنه د شوروی جما هیرواتحاد ته د همایونی معظم اعلیحضرت دغیررسمی مسافرت

په باب کښې خپور شوی و د پروګرام سره سم نن د اسد په ۱۵ نیټه د سهار په اتو بجو او ۴۰ دقیقو همایونی معظم اعلیحضرت د شوروی جما هیرو اتحاد ته تشریف یوور ، د سوسیالیستی شوروی جما هیرو په اتحاد کی به د همایونی معظم اعلیحضرت استوګنه اته ورځی دوام وکړی .

د اسد ۱۶ : ملی شوری پخپله پرونی عمومی غونډه کی د بین المللی ۱۹۶۱ کال د مغد را تو وا حد میشاق تصویب کړ د غه میشاق د ۱۹۶۱ کال د مارچ په دیرشمه نیټه په بین المللی صورت د ملګرو ملتو د موسسی په اقتصا دی او اجتماعی شورا کی د نړیوا لو په ښا رکی ترتیب شوی اود افغانستان لخوا د ملګرو ملتو په موسسه کی د افغا ن دا یمی نما ینده ګـی مستشار دکـتور عبد الحکیم طبیبی هغه لاسلیک کړی دی .

د اسد ۱۷ : د ښاغلی سردار محمد دا ود صد راعظم لخوا د جمیکا د آزا د ی په منا سبت د هغه هیواد د صد راعظم جلالتمآب الکزاند ربو ستمنت په نا مه کینګستن ته د مبار کـی تلګرام مخا بره شوي د ی .

د اسد ۱۹ : د ملی شوری د خارجه چا رو کمیسیون په پرونۍ غونډه کښې د افغا نستا ن د شا هی حکومت او د پولیند د ولسی جمهوریت د حکومت ترمنځ د ملکی هوا ئی حمل و نقل د خد متونو د موا فقت لیک په باب کښې خپله فیصله صا دره کړه اود عمومی مجلس د غور د پاره ئی د ملی شوری دارالانشاء ته و سپا رله .

د اسد ۲۰ : د کند ها رد بین المللی هوائی میدان د برښنا ۵ ۴ کیلوواټه د ستګاه ورمه ورځ په کار وا چوله شوه ، د ملکی هوائی ریاست ، ر ئیس ښا غلی حکیمی په یوه مرکه کښې وویل د هغو ځلو ښتو کورونو له جملی څخه چه د کند هار هوائی میدا ن ته نژدی د میدان د مامورینو د پاره شروع شوی وُ شل کوره ئی جوړ شوی دی او نور کور ونه هم د بشپړ کیدو په حال کی دی د کند ها ر د میدان د کنترول برج په سلو کی نوی او د میدان هوټل چه سل کوټی لر ی په سلو کی نوی بشپړ شو یدی .

هیله کیږی چه د کند ها ر د بین المللی میدان مر بوطی ټولی د ستګا وی او تا سیسا ت د پروژی له مخی د سږ کال د قوس تر پنځلسمی نیټی پوری بشپړ او د استفا دی وړ شی .

---

# په پښتونستان کښې مهمې پېښې

## د ۱۳۴۰ کال دسنبلې په میاشت کښې

### پوشمیر کسان بند یان شوی دی

دپېښور دضلع مربوط دگل بېلې اوسیدونکي ښاغلي طلامحمد دمردان د ضلع مربوط دپرخود کلي اوسیدونکي ښاغلي علم دین اودمردان دضلع مربوط دلوند خوړ اوسیدونکي ښاغلي امانت خان دپاکستان داستعماري حکومت له خواپه درې کاله سخت بند اود مردان دضلع مربوط دلوند خوړ اوسیدونکي ښاغلي زرین خان په نهه کاله سخت بند محکوم شوي دي .

### په عسکري تهاڼه باندې یې بمونه واچول :

دپښتونستان یوشمیرملي مجاهدینودسنبلې په اوه لسمه نیټه په جندول کښې دکوټکي په عسکري تهاڼه لاسي بمونه واچول او ددغه کارپه وجه یوشمیرپاکستاني عسکرمړه اوخوتنه سخت زخمیان شول په همدې نیټه دملي مجاهدینو یو بل ټولگي په یوې پاکستاني گزمه حمله وکړه دهغې نښتې په نتیجه کښې چه وشوه دپاکستاني گزمې افراد تښتیدلو ته مجبورشول بل خبروایي چه ددیرپه ریاست پورې مربوط یو شمیرملي مجاهدینو دټیکوټ په تهاڼه اود ملي مجاهدینو یو بل ټولگي دسنبله په شپاړلسمه نیټه په جندول کښې دایسار په عسکري کمپ حمله وکړه دملي مجاهدینو او د پاکستاني قواوترمنځ دسختې محاربې په نتیجه کښې یې ددښمن قواو ته دسراومال تلفات ور واړول. دسنبلې په پنځلسمه نیټه یوشمیر ملي مجاهدینو دښار په کمپ کښې لاسي بمونه واچول. دغه راز د سنبلې په ۱۵ـ۱۶ او اولسمه نیټه دچار منگه اواتمانخیلو د ملي مجاهدینو بیلو بیلو ټولگیو دښارپه کمپ حمله وکړه اوددښمن قواو ته یې سخت تاوانونه اړولي دي او ملي مجاهدینو ته هم تاوان رسیدلی دی .

بل خبروایي چه دهغې نښتې په نتیجه کښې چه دسنبلې په ۱۳ او ۱۴ نیټه دملي مجاهدینو اودښار دکمپ اوسیدونکو پاکستاني قواوترمنځ شوې وه زیات شمیرپاکستانیان وژل شوي اوټپیان شوي کسان مونډې ته ولیږدول شول.

### داتمانخیلو اوماموندو پښتنو له خوادښار اوسکندرو په فوځي کمپونو باندې حملې کړې

داتمانخیلو اوماموندو بیلوبیلو ټولگیو ملي مجاهدینو دخپلو قومي لارښوونکو په مشرۍ بیا دښار اوسکندرو په فوځي کمپونو حملې وکړې اوددښمن قواوته یې درانه زیانونه ورسول دماموندو یوټولگي ملي مجاهدینو شوقدرته نژدې دپولیسو په تهاڼه باندې لاسي بم وغورځاوه اوصدرگړې په ساتونکو باندې یې هم ډزې وکړې دمټې اوشوقدر په تهاڼو باندې دمـوماندو دملي مجاهدینو نوروټولگیودمټې اوشوقدرپه تهاڼو باندې شکلو نه وکړل اودموماندو یو بل

ټولګی ملی مجاهدینو په موفقه‌برجونوکښی دپاکستان دژاندرام په‌یوی قطعی‌افرادو باندی بریدونه وکړل دهغه راز دمومندو دملی مجاهدینو نور و ټولګیو دمټی داماڼ او میچنی په تواڼو اودتنګی په تهاڼه باندی بریدونه وکړل یوی ډلی ملی مجاهدینو د شیخ ملی دتواڼی په سیمه‌کښی دتلیفون ستنی او دهغو مزی له منځه وړلی دی او یو بل ټولګی ملی مجاهدینو په ملنګی سرای کښی د پاکستانی ملازمینو د استوګنی په ځای لاسی بم واچاوه.

## دښار په فوځی کمپ باندی یی حملی وکړی:

دسنبلی په ۱۹ دچهارمنګه یوی ډلی ملی مجاهدینو دښاغلی ملك میراحمدشاه په مشری اود سنبلی په شلمه ورځ دماموندو یو ټولګی ملی مجاهدینودښاغلی ملك ګلزاراوښاغلی ملك عبدالعزیز په لارښودنه اودغه راز دسنبلی په ۲۱ ورځ دماموندو یوشمیر نورو ملی مجاهدینو دښاغلی ملك هارون اودګنګه دښاغلی جانصاحب په مشری دښار په فوځی کمپ باندی حملی وکړی اوددښمن قواؤ ته یی زیانونه ورسول.

دشمالی ازادپښتونستان دمومندو لهځانګی‌نه رارسیدلی‌خبرونه‌وایی‌چه‌دسنبلی په۱۳ ورځ دملی مجاهدینو یوی ډلی ددیکه غوند دتهاڼی په سیمه‌کښی دتلیفون مزی له مینځه وړی دی چه ددی‌کاری‌په وجه‌په هغه ځای‌کښی مخابره شلیدلی‌ده. دتیرادځانګی‌خبروایی چه دسنبلی په ۱۸ ورځ یوشمیر ملی مجاهدینو دانځری‌کنډوپه اوسیدونکو پاکستانو فوځیانو باندی برید کړی دی اودغو فوځیانوته یی زیانونه وراړولی دی.

## دپاکستان‌استعماری‌حکومت‌بیادمامو‌ندو په‌سیمو‌باندی‌سختی‌بمباری‌شروع کړیدی

دپاکستان استعماری حکومت بیاپه باجوړکښی دماموند په سیمو باندی سختی بمباری شروع‌کړی دی. دسنبلی په ۲۳ ورځ دسهارپه ۹بجودپاکستان دحکومت بمباجورونکو الوتکو دتنګی اوګړیګال په‌کلیوباندی سختی بمباری وکړی اوددغوکلیوخلکوته یی ډیرزیانونه رسولی دی دپاکستان دنظامی الوتکو له خوا دیوکال نه‌را پیسته دباجوړ په خاوره باندی بمباری‌کیږی یوبل خبر وایی چه دپاکستان داستعماری حکومت دغه وحشیانه‌کار دماموند و ټول قوم پارولی او دوی یی دپاکستان داستعماری حکومت سره په جګړه کښی په اتحاد او تنظیم‌سره قوی‌کړی دی.

د اپریدو ملك دین خیلو قومی‌جرګی دافغانی قونسلګریو او وکالت تجارتیو د بندولو په باب دپاکستان د حکومت اقدام وغاندی‌دی و رځوکښی د اپریدو دملك دین خېلو دعلماو نمایندګانو او نورو ډیرو خلکو په ګډون یوه ستره‌ملی جرګه شوی وه اوپه هغی کښی یی دپاکستان استعماری سیاست ډیر زیات وغاندی‌په‌جرګه کښی د افغانی قونسلګریو او وکالت تجارتیودبندولو دیوجانبه اقدام په باب کښی چه د پاکستان دحکمرانانو له خوا شوی او کیږی دپاکستان داستعماری حکومت سیاست‌هم تر غور اوبحث لاندی نیول شوی او وویل شول چه دپاکستان دحکومت ددښمنی دغه اقدام

په خپله منشا یوا زی دپښتونسان دآزادۍ په نسبت دافغانستان دملت اوحکومت دحمایې او ملاتړ نه اخلی. مو نږ دپښتونستا ن خلك وربا ندی پو ره پوه شو ی او په ټینګه د هغه په ضد تنفر ښکا ره کووجرګی دباجوړ په سیمو باندی دپاکستان دحکومت استعماری تیری وحشیانه اوغیر انسا نی اقدام بللی اودپاکستان حکومت ته یی اخطار ورکړی چه که چیر ی دخپلو دغو تیریو نه ژر ترژوه لاس وانه اخلی نو دپښتونستان ملت دسخت قیام سره به مخا مخ شی.

## دازادۍ غوښتلو په ګناه دپاکستانی حکومت له خوا بندی شو

دبختیار خان اخکزی زوی ښا غلی عبدالله په دی ورځو کښې دآزادی غوښتنی د فعالیت په ګناه دپا کستان داستعماری حکومت له خوا نیول شوی اوبندی خا نی ته لیږل شو ی دی.

پاکستانی الوتکو دبا جوړپر یوشمیر نورو کلیو باندی هم وحشیانه بمباری او یو شمیر پښتانه نر او ښځی یی شهیدان کړیدی:

دآزاد شمالی پښتو نستان دبا جوړ خانګی نه دمامونډو په سیمو با ند ی دپا کستا ن دالوتکو وحشیانه بمباریو په تعقیب څرګنده شوی ده چه ددغو بمباریو په وحشیانه اقدام کښی سر بیره په هغو کلیو باند ی چه یادشوی وو په «ګواټی» او «مینه» اودبلید ټنده» باندی هم بمباری کړ ی او ډیر زیانو نه یی ورته رسو لی دی. دغه بمباری هغه وخت وشوی چه دمامونډو دکاکازو د قبیلی افرادو مشرانو او علماوو دګړیګال دکلی په لو ی جو مات کښی قومی جرګه جوړه کړ ی وه او دباجوړ په خاوره باندی دپاکستان داستعماری حکو مت تیر یی تر بحث او غو ر لاندی نیولی ؤو خبر څرګندوی چه دمومندو دقوم یو شمیر قو می کسان هم دخپلو مامونډو وروڼو سره دهمکار ی او همدردی دښکا ره کولو په غرض دغی جرګی ته حاضر شوی ؤ د ګړیکال دکلی جومات په دغه وحشیانه تیری کی خراب او وران شوی دی اوسر بیره په هغو سړیو باندی چه شهیدان اوزخمیان شوی دی له میرمنو او پیغلو څخه هم چه دقومی فیصلو داوریدلو دپارهٔ جومات ته حاضری شوی وی شهیدانی اوزخمیان شوی دی.

دشهیدانو نومونه: دمامونډو فضیلتمآب ملا فضل الرحیم، دګړیکال دکلی دجامع جومات خطیب او دمامونډو ښاغلی ښایسته ګل دمامونډو ښاغلی محتم خان دمامونډو ښاغلی زیرون خان اودمامونډو دښاغلی بختور خان پیغله لور شهیدان شوی او یو ټولګی نور کسان زخمیان شول.

## پښتنو مجاهدینو ۱۸ تنه پاکستانی عسکر وژلی اوڅو تنه یی ټپیان کړیدی:

دمسعودو یو شمیر ملی مجا هدینو دښاغلی ملا شیر علی په مشری دټنګی په فو ځی تاڼه بان د ی حمله وکړه او دهغی سختی نښتی په نتیجه کښی چه دد وا ړ و خواؤ تر منځ وشوه ددغی تاڼی پنځه تنه عسکر وژل شوی او دوه تنه نور یی ټپیان شو ی دي له ملی مجاهدینو څخه هم په دغه جګړه کښې یو تن چه میر داد خان نومیږی ټپی شوی.ی دملی مجاهدینو بلی ټولنی دجنډولی دچوڼی په یو شمیر فوځیانو باند ی حمله کړ ی او د ملی مجاهدینو او ددغو فو ځیانو تر منځ دجګړی په نتیجه کښې ددښمن لس تنه مړه شو ی او له ملی مجاهدینو څخه دوه تنه ښاغلی الله جان خان اوښاغلی محمداعظم خان ژوبل شوی دی دغه راز د ملی مجا هد ینو نورو ډلو په یو ټولګی پاکستانی عسکرو باندی دوانا مربوط

دتوانی نه سیمه کښی او همدارنگه دسروکی‌په چونی باړو نه چلولی دی خوددښمن قواؤته رسیدلی تاوانونه تر اوسه پوری نه‌دی معلوم شوی.

## دری‌تنه‌پاکستانی‌عسکر یی‌وژلی‌دی

دملی مجاهدینو د حملی په نتیجې کښی چه دسنبلی په ۲۲ ورځ یی جمرود ته نژ دی دپاکستا ن په یوه عسکری قطعه کړی وه یو تن پاکستانی عسکر وژل شوی او یوتن‌عسکر سخت ټپی شوی دی . دباجوړ خانگی خبرونه وایی چه‌یوتن ملیشایی حواله دار په هغه حمله کښی وژ ل شوی‌دی چه په دی ورروستیو وختو کښی‌دملی مجاهدینو لخوا دسکندرو په کمپ باندی شوی وه‌او یوتن بل دمونډی په کمپ کښی وژل شوی دی.

## دمحکوم‌مرکزی‌پښتونستان‌سوداگران‌اوصنعتگر‌ن‌ټول‌بی‌کاره‌او‌مشوش‌دی!

له هغی ورځی څخه‌چه دپاکستان استعماری حکومت د مرکزی‌محکوم‌پښتو نستان‌په‌ولایت کښی افغانی قو نسلگر ی او تجا ر تی ادا ر ی د یو جا نبه ا قدام په صور ت بند ی کړ ی د ی د پیښور ا و دهغه ځ ا ی د نو ر ښا رو نو او با زار و نو خپل ر و نق دلا سه ور کړی او‌په ټو لو چا ر و کښی د ر کو د حا لت لیدل کیږ ی سو دا گر ان ، صنعت گران ، مستر یان ، مزدور کا را ن او کمیشن کا ران چه دپیښور د ښار دننو سو ز یاته بر خه تشکیلوی ټول بیکار او بی اندازی مشوش‌دی او دپاکستان دحکومت په دغه اقدام ډ یر مضطرب او پر یشان دی خبر دا هم وا ئی چه دپا کستان حکومت دخلکو ددغه اضطراب او پا ریدلو څخه وار خطا شوی او دجاسوسانواو خفیه پو لیسو شمیریی ز یات کړ ی دی سر بیره پد ی په خلکو کښی د غه آوا زی خپر وی چه که چیری څوك له‌دی لار ی نه د حکو مت په سیا ست باندی انتقاد و کړی سخته سزا به ورکړی شی مگر دخلکو مجبوریت تر دی حده پو ری دی چه په دغه تهد ید هیڅ پر وا او‌اعتنا نکوی او دپا کستان داستعماری حکو مت بی سنجشه او نا عا قبت اند یشانه سیاست او ددښمنی اقدا م چه په حقیقته کښی سر بیره پد ی چه د افغان ملت په حق با ندی ښکاره تیری دی د پښتو نستان د خلکو په مقا بل کښی هم د دښمنی یو حرکت دی او‌په شد ت یی غند ی .

## دپښتونستان د ورځی په منا سبت په‌نوی ډیلی‌کښی ستره غونډه شو ی وه

د پښتونستان د و رځی په مناسبت دهند دپښتون جرگی له خوا په نوی ډ یلی‌کښی یوه ستره ټولنه شوی وه چه په هغی کښی په هند کښی او سید ونکو زیات شمیر پښتونستانیانو د افغانستان لوی سفیر او د هغه سفارت غړ یو او دښار مخورو گډون کړی و .

## دچکدری په نظامی کمپ کښی :

د چکد ری په نظا می کمپ کښی د پا کستانی عسکر و تر منځ سخته نښته شو ی و ه او د هغی په اثر ددغه کمپ پنځه شپیته تنه عسکر وژل شوی دی او دپا کستان د عسکر و تر منځ مخا لفتو قه ډیر سخت شوی دی دغه راز په دی او رو ستیو وختو کښی د جندولی یو شمیر ملی مجا هد ینو په دوو پاکستانی لا ریو باندی چه عسکر پکښی و حمله کړی ده پاکستانی عسکر یی وژلی او دواړو لاری یی له منځه وړی دی همدا رنگه دما موند و

او اتما نخیلو دملی مجاهد ینو د ری نور و ټولګیو د ښاغلی ملك میرو کیل خان ، ښاغلی ملك پاد شاه خان ، ښاغلی ملك یو سفخا ن او ملك تماس خان په مشری د ښا ر په کمپ حمله کړی او دپاکستان قواوته یی تلفات رسو لی د ه .

## دپاکستان حکومت یو شمیر نورپښتانه نیولی او بندیان کړی یی دی:

دپا کستان حکو مت دمحکوم مرکزی پښتونستان ټول سیاسی بندیان چه په جزا محکوم شوی دی پدی وروستیو وختوله پښور څخه دسند اوپنجاب او مچ جیلو نوته لیږ دولی دی، لکه څنګه چه داګست په ۲۳ نیټه دپیښورله سترو کسانو څخه دپیښوردښار دملی ګوند رئیس ښاغلی کوثر غوریا خیل اوښاغلی ولی محمد جر نیل یې دمچ بند ته لیږلی دی ، دغه راز داګست په ۱۷ نیټه پنځوس تنه سیاسی بندیان یې د ملتان او داګست په ۲۱ نیټه یې شپږویشت تنه سیاسی بندیان دمچ جیل ته لیګلی دی . دغه راز درویشت تنه سیاسی بندیان د نظامی محکوم له خوا په سختو جزاګانو محکوم شو ی دی :

په سخت بند محکوم شوی دی .

دپاکستان استعماری حکومت دآزادی غوښتنی دفعالیت په ګناه دچمن ښاغلی نصرالله خان بیانزی چه دمغه ځای له مخورو څخه ده په د ری کا له سخت بند او دکلات د خان اعظم دنره زوی ښاغلی عبدالظاهر بلوڅ په اوه کاله سخت بند اولس زره کلداری نقدی جر یمه او دمستونګ له مشهورو کسانو نه ښاغلی محمد حنیف بلوڅ په دری کاله سخت بند محکوم کړی دی.

## په شمالی آزاد پښتونستان کښې دپښتو نستان دو رځې تو دهر کلی شویدی:

دپښتونستان ورځ په اپریدو ، ورکزیو ، پړی خمکنو ، خیبر ، مومندو ، صافی ، شنوا رو او باجوړ کښې په جوش اوخروش سره استقبال شوه اوپه دغه مناسبت په شمالی پښتونستان کښې غونډی شوی وی اوپه هغو کښې مشرا نو او علماؤ دوطن د آزادولو اود پا کستان دا ستعماری حکومت په ضد دودامدارو مجاهدو اودپا کستان داستعماری ظلمونو په خلاف دجدی اقداماتو په باب کښې چه دمحکوم پښتونستان په آزادی غوښتو نکو باندی کیږی او دآزادی غو ښتلو په ګناه ، بیګناه خلك بندیانوی اودهغوی مال اوجایدادونه ضبطوی، جذابی وینا وی وکړی او ټکور تصمیمو نو ونیول شول اودپښتو نستان ورځ یې په تودو احساساتو استقبال اودپلرونوپه دودګی په غرونو باندی اورونه، بل کړل اودټو پکو پر له پسی ډزی یې وکړی اوپه ټو لنو کښې په دغه ناری وهل کیدلی چه آزاد دی وی پښتونستان اومړه دی وی پښتنو دښمنان اوتل دی وی د افغانستان او پښتونستان دوستی او ورورګلوی .

## دپاکستان دپښتانه اوپنجابی عسکرو ترمینځ بله نښته شویده :

دپا کستان په اردو کښې په تیره بیا ددیره جندول او باجوړ په عسکری کمپو نو کښې دپښتا نه اوپنجابی افرادو ترمنځ بحرانونه او کړ کیچو نه ورځ په ورځ زیات شوی دی لکه څنګه چه په دی وروستیو وختو کښې یو ځل بیادسکندرو په عسکری کمپ کښې ددوا ړو خواو ترمینځ سخته نښته وشوه اوددوا ړو خواؤ دسر دتلفاتو باعث شوی ده. بل خبروایی چه دپاکستان استعماری حکومت دسنبلی په یو ولسمه نیټه دښارله کمپ نه دبر ترځ دسر کنو په کلی باندی په توپو نو سخت یرغل کړی دی

چه دهغه په اثر په هغه زیات تاوان سره بیرته چه د دغه کلی د دا نیو ته رسیدلی دی یو تن مړ او څلور تنه چه ښاغلی محمد زالی، ښاغلی محمود نورشاه، ښاغلی محمد سعید او ښاغلی خان زاده دی سخت ټپیان شوی دی .

**یو شمیر پښتانه سیاسی بندیان په بیلو بیلو جزاګانو محکوم شوی دی :**

دپاکستان استعماری حکومت ډیری نوی ګرفتاری کړی دی چه دهغی جملی نه د دیرۀ اسمعیل خان د ضلع دپتیالی او سیدو نکی ښاغلی حاجی محمد خان غلام حسین، ښاغلی عبدالعزیز، ښاغلی یعقوب او دمردان د ضلع بغدادی او سیدونکی ښاغلی با بو سید په دری کاله سخت بند او دپیر سباك او سیدونکی ښاغلی حضرت نور او ښاغلی لال الدین او داکوړی خټك او سیدونکی ښاغلی رحیم بخش او ښاغلی فاروق او دمصری باندی ښاغلی عبدالقادر او دشیدو ښاغلی با جوړ خان په نه میاشتی سخت بند او په یو زر کلدار نقدی جرمانه محکوم شوی دی .

**دمیزان په میاشت کښی،**

**دګنداو دحلیمزو قومی جرګی فیصله :**

په میاشت دمیزان کښی دګنداو دحلیمزو دقبیلی یوه لویه جرګه وشوه او په هغی کښی د پاکستان دحکومت داستعماری سیاست او دپښتونستان په ملت باندی ددغه حکومت دوحشیانه تجاوزو په باب کښی ډیر زیاته ګرکه او تنفر ښکاره شوه. جرګی بو حل بیا دراُیو په اتفاق تایید کړه چه دحلیمزو قوم به په هیڅ وجه دپاکستان دحکومت داستعماری پروګرامونو د عملی کولو سره موافقه و نه کړی او په مقابل کښی به ګی په خپله ټوله قوه مقابله و کړی .

**دپاکستان حکومت یو شمیر نور پښتانه بندیان کړیدی :**

دپاکستان داستعماری حکومت له خوا دظلمونو او نیولو سلسلی بیا زور او شدت کړی او دپاکستان استعماری حکومت هغه کسان چه دپاکستان دملکی قوانینو د نه اطاعت په تحریك کښی دهاملو مجاهدینو او رضاکارو سره نژدیکت او خپلوی لری هم ځینی بندیانوی او ځینو ته زیان او ضرر رسوی. لکه چه دمیزان په ۱۱ نیټه دپښتوژبی دمشهور پوهاند او دپښتونستان دملی محافدنو میالی شخصیت ښاغلی حسین بخش کوثر پلار چه ښاغلی کریم بخش نومیږی نیولی اود هغه ټولی ځمکی او جایدادونه یی ترمراقبت لاندی نیولی دی. دغه راز دسردار ګړی او سیدو نکی ښاغلی ولی محمد طوفان دوهم ځل بیا بندی شویدی او دافغانی بندی شوی ده قونسلګری یو تن پخوانی دریور ښاغلی جلال خان دمیزان په ۱۳ نیټه دپاکستان له خوا یوالمی پدی ګناه چه یو وخت دافغانی قونسلګری دریورو بندی شوی دی. دکوزتاکال او سیدونکی ښاغلی اکرم خان هم دمیزان په ۱۲ نیټه دپاکستان دحکومتی مقاماتو له خوا بندی شوی دی.

**دپښتونستان د آزادی خواهانو نهضت دوام لری :**

دلویدیز پاکستان د نام نهاد یونت دپخوانی اسامبلی غړی دنوښار دتحصیل مربوط دپبو او سیدونکی ښاغلی سید یعقوب شاه هم په هغو کښی شامل دی. همدارنګه ښاغلی کرامت شاه فولاد چه دملی ګوند یو ستر سړی دی، بیا د نظامی قانون په اساس ګرفتار کړی دی دغه راز دپیهور دښار د قاسم علی خان د جامع جوماتی خطیب او امام مولوی فضل احمد دپښتو نا متو خطاط

ښاغلی طلامحمد انجم، ښاغلی محمد اسمعیل، ښاغلی میر اسلم او ښاغلی معصوم، د سیاسی فعالیتونو په الزام د نظامی حکومت لهخوا بندیان شوی دی. بل خبر وائی چه د کوهاټ او سیدونکی ښاغلی شیخ رحیم الله د ملکی قوانینو د نه اطاعت د تحریك د بندیانو په سلسله په یوه کال سخت بند محکوم شوی دی. بل رپوټ وائی چه د منظمی دسیسې، د ترتیب لهمخی پښتو لیکوال او شاعران، یو په بل پسی له مطبوعاتی او ثقافتی ادارو څخه ایستل کیږی او د هغه په ځای پنجابی پناه وړونکی او متعصب کسان راوستل کیږی .

د بندیخانو د چارو د واکمنو لهخوا له پښتونستانو سیاسی بندیانو سره سخته او ناوړه رویه کیږی او بی له دی چه د سن او د کال مواعات وکړی په هغو باندی شاقه او ستومانه کوونکی کارونه کوی، همدا وجه ده چه د ښاغلی اجمل خټك، ښاغلی میر مهدی شاه مهدی، او د ډیرو نورو بندیانو صحت د پاکستان د استعماری حکومت د وحشیانه رویی په اثر بیخی خراب شوی او وضع ئی د اندیښنی وړ ده.

## د مسعودو مجاهدینو لهخوا د وانه په نظامی کمپ باندی لاس بم واچول شو:

د مسعودو د دوو ټولګیو ملی مجاهدینو د جندولی په سیمه کښی په یوی عسکری تهاڼی او همدا رنګه پخپله د جندولی په چوڼی باندی برید کړی دی او د ملی مجاهدینو یوی بلی ټولنی د وانه په عسکری کمپ لاس بم وغورځاوه او د غه کمپ ته یی تاوان ورساوه د غه راز یو شمیر نور ملی مجاهدینو د جندولی د پاسته کښ په سیمه کښی د تیلفون ستنی او مزی له مینځه وړی دی .

## د مردان د ښار په شنکر بازار کښی څو بمونه چول شوی دی :

د میزان په نهمه ورځ د مردان د ښار په شنکر بازار کښی څو لاس بمونه وچول شو ل .

همدغه راز څو نور لاس بمونه د مردان د ضلع په شاو خوا کښی چوول شوی او د پاکستانی مقاماتو د پریشانی سبب شوی دی . د مومندو د ملی مجاهدینو بیلو بیلو ډلو د میزان په ۹ ، ۱۱ ، ۱۲ ، او ۱۳ نیټه د مومند، غوندنو و او یکه غو ند د ژاندارم په ټا نو ډ ز ی کړ ی لو د دښمن قواؤ ته ئی زیانونه رسولی دی. همدا رنګه د میزان په لسمه نیټه یو شمیر ملی مجاهدینو په کورمه کښی د شیخ ملی په تاڼه باندی لاس بم اچولی دی او د هغه په اثر د هغی تهانی له ساتونکو څخه یو تن وژل شوی او د تهاڼی ودانی ته زیان رسیدلی دی .

د اتمانخیلو یو شمیر ملی مجاهدینو د میزان په شپاړسمه ورځ د حاجی لونګ او سکندرو په دوو عسکری تهاڼو باندی حمله وکړه او د هغی نښتی په نتیجه کښی چه د ملی مجاهدینو او د غو تهاڼو د ساتونکو ترمنځ وشوه د پاکستانی عسکرو څخه څو تنه ټپیان او پاتی کسان وتښتیدل ملی مجاهدینو د واړه تهاڼی بیخی ورانی کړی .

## د مسعودو مجاهدینو یو تن پاکستانی عسکر مړ او څو تنه یی ټپیان کړی

د مسعو دو د دښمن خیلو د قوم یو شمیر ملی مجا هد ینو سپیلټوی د چوڼی په فو ځیا نو با ند ی حمله کړیده د هغی نښتی په نتیجه کښی چه د ملی مجا هد ینو او د پاکستان د عسکرو ترمنځ وشوه د پاکستان یو تن عسکر مړ او څو تنه نور یی ټپیان شو ل د ملی مجا هد ینو بلی ډ لی د شهید تنګی په علاقه کښی یو پوخ پل د چاودید ونکو موادو په چاودنه وران کړ ، د غه راز

دملي مجا هد ينوبلي ډلي دجنګ ولي دچوڼۍ په يو شمير مربو طو عسکر ی افرا د و حمله کړی ده اوددغوافرا دوله جملې څخه ئې دوه تنه ټپيان کړل .

**دعقرب په مياشت کښې :**

په محکوم مرکزي پښتونستان کښې دپاکستان استعما ري حکومت د پيښور يوتن مخور اود صد يق د تجا رتي شرکت خا وند ښاغلی محمد صد يق دپښتو نستا ن د آ زا د ی په په لیا ره کښې د سيا سي فعاليت په الزام بندي کړيدی . همدا رنګه ټولي ادبي ، مذ هبي اوتجا رتي اتحا ديې اوټولنې ړنګې کړي اودغه ټولنې يې د عسکري قانون په خلاف ا علام کړی دی اوددغی ټولی ټولنې اواتحا د يې په حقيقت کښې د سياسي تنظيم ا و دملي محا ز اجزاګڼي اوتصورکوی چه دغه اتحا د يې اوټولنې په اوسنې بحران کښې لاس لری .

**پښتونستاني مجا هد ينوڅوتنه پاکستاني پوليسان ټپيان کړی د ی**

په دوا وه کښې دبټه ګرام دپوليسوپه تاڼه کښې د پښتو نستان ديوی ډلي ملي مجا هد ينو له خوا څوبمونه چول شوی دی ، پوشميرنو رو ملـي مجا هـد ينو د چا رسد ی او پيـښور ترمنځ نيمه يي دتيلفون مزی په زيا ته فا صله له منځه و ړ ی د ی او د ملي مجا هد ينو بلي ډلي د مردان په ښارکښې دپوليسو په يوه تاڼه باندی حمله وکړه اودد وا ړو خوا و دنښتې په نتيجه کښې دتاڼې څوتنه‌پوليس‌ټپيان شوی دی. دغه را زيوی‌بلي ډلي‌ملي مجاهدينو دنوښارپه عسکری‌کمپ باندی حمله‌کړی ده اوپه يوڅه و سله سربيره چه ولجه‌کړی ئې د ه څو تنه پاکستاني‌عسکر ئې‌هم سخت ټپيان کړيدی. د ميزان په شلمه‌نېټه‌يوشمير‌ملي مجاهدينو دعلي نګل په تاڼه باندی لاسي بمونه اچولي اوهغې ته ئې تا وان وراړولی دی اوو تا ني يوتن سا تو نکی ئې ټپي‌ګړ ی د ی د ملي مجا هد ينو بلي ډلي د ميز ا ن په ۲۵ نيټه دپا ړه چنا ړ دپوليسوقرا رګا ه ته دچاودونکوموا دوپه وسيله تا وان وراړولی د ی .

**څوتنه پښتانه مشران بيرته بندي شوی د ی :**

څوتنوهغوبنديانو چه دملکي قوانينو دنه اطاعت د تحريك په‌سلسله کښې د پا کستا ن داستعما ري حکومت له خوا ددريومیا شتوپه سخت بند محکوم شوی او پد ی و ختو کښې دبند دمودی له پوره کولو نه وروسته خوشې شويدی بيرته محلي حکا موته ور غلي او دد غه تحريك په سلسله ئې‌خانونه دګرفتا رۍ دپا ره معرفي کړيدی . له هغې جملې‌څخه دمردان د ضلع مربوط دمرغزخلورتنه اوسيد ونکي بيرته نيول شوی او محبس ته‌ليږدول شويدی . دغه را ز دکوهاټ دضلع مربوط دلاچي اوسيد ونکي ښاغلي‌مولوی سيد حبيب ا لله ، ښاغلي محمد اکرم ، ښاغلي ملك زنکي‌خان اوښا غلي اسدعلي‌خان د سياسي فعاليت اودپښتونستان دآزا دۍ د مجا هدی په الزام بند يان شوی دی دآزاد پښتونستا ن ا وسيد ونکی ښا غلی محمد رفيق هم پدی وختو کښې دکو هاټ د ضلع مربوط په توره وړۍ کښې‌په همدی سلسله نيول شوی دی دکوهاټ اوسيد ونکی ښا غلي مولـوی سيد امين د صوا بۍ د تحصـيل اوسيد ونکي ښاغلي مولينا اشرف خان اوښا غلی مو لينا نظا م الد ين خا ن د پا کستا ن

داستعما ری حکومت په خلاف دخطا بو د ورکولو به اثر دپا کستا نی حکا مو له خو ا بند یان شویدی .

د پښتونستان پوشمیرملی مجاهد ینو د ښاغلی ملك خیر محمد په مشری د وانه د کمپ دالحاقیه‌ودانیو یوی برخی ته‌اوراچولی‌اوتاوان ئی‌رسولی‌دی . دملی مجاهد ینو بلی ټولنی دملك خیر محمد په لار ښوونه دکاله اغذی په عسکری تاڼه باندی لاسی بمونه اچولی دی اودغی تا ڼی ته ئی تا وانونه رسولی دی دپا کستان داستعما ری حکومت د صحراکلی او سیدونکی ښاغلی صوابدار نورمحمد او دپیوار اوسید و نکی ښا غلی ملك شند ی د سیا سی فعا لیتو دالزام په اثر په څلورکاله سخت بند محکوم کړیدی .

## داتما نخیلومجا هدینو څوتنه پاکستانی عسکر وژلی دی:

پداسی‌حال‌کښی‌چه یوشمیرپاکستانی عسکرګرځیدل داتمان خیلو وماند ل د قبیلی ملی مجا هد ینوپه هغوی باندی حمله وکړه اوپدغه ترڅ‌کښی د د وا ړو خوا و تر منځ جګړ ه ونښتله چه د سهاو نه ترما زیګر ه پوری روانه وه ،په نتیجه‌کښی دپا کستا نی عسکرو نه څو تنه وژل شویدی دمجاهد ینوڅخه یوتن شهید اویوتن زخمی شوی د ی .

دوی پیښی په وجه دپاکستان حکومت داتمان خیلو دافرا دو په نیولولاس پوری کړی چه دماندل دقوم یوشمیرکسان ئی نیولی دی او داتمان خیلوقوم ته‌ئی اخطا ر ورکړی دی چه داتمان‌خیلوپه ټوله سیمه باندی به بمبا ری وشی .

## یو تن پاکستانی مامور وژل شوی دی :

دلاهورد شاه دری په بڼ‌کښی لاسی بم وچول شواود هغه په اثریوتن پاکستا نی ما مور وژل شویدی همد غه رازپه نوموړی نیټه دملی مجا هدینو یوی ډلی دپیښور هوا ئی ډګر ته لاسی بمونه وروغورځول اوزیانونه ئی ورواړول ،

## دجندول په مونږه اودبټ خیلو په‌کمپ‌کښی :

یوشمیرملی مجا هد ینو دپاکستان په یوه عسکری تا ڼه چه دآهنګروکنډ ونو میږ ی حمله‌کړی اود تا ڼی ساتونکوته ئی زیانونه رسولی دی . د څهار منګ دملی مجا هد ینو یوی ډلی د ښا غلی ملك سید ولی اوښاغلی ملك همیش په مشری دښا ړپه‌کمپ حمله کړی اود هغی نښتی‌په نتیجه‌کښی چه ددوا ړوخوا وتر منځ وشوه دد ښمن قوا ؤ ته زیا نو نه رسول شوی دی . همد غه راز ملی مجا هد ینو یوی بلی ډلی د بټ خیلی عسکری کمپ ته لاسی بم غورځولی چه د هغه په اثرد هغه‌کمپ یوتن منصبدارټپی شوی دی ، دملی مجاهدینو یوی بلی ډلی دجند ول په مونږه‌کښی یوتن پاکستانی ما مور وژلی دی .

## یوشمیر پښتانه بند یان شوی دی :

دپښتونستان یوشمیرآزاد ی غوښتونکی دپیښور دتحصیل مر بوط د مسیزو او سو ړیـزو په‌کلیوکښی دپاکستان د ملکی قوا نینو دنه اطاعت په سلسله‌کښی دپاکستان د استعما ری حکومت له خوا بند یان شوی دی . دغه رازد پیښور د ښا ر یوشمیرهغه دکا نداران چه

دپاکستان د نظا می‌حکومت د ځلورم کال د شروع‌کید وپه منا سبت د څرا غونوله لګو لو او ددکانوله بنکلی‌کولوڅخه ډډه کړی وه دپاکستا نی‌حکا مو د او ا مر و د نه طـا عت په‌ګناه بند یان شوی دی .

**پښتنوښا عرانوپه‌مشاعره‌کښې ګډون ونکړ :**

د مرکزی محکوم پښتونستان د پښتوښا عرا نو اوادیبانوپه هغه‌مشاعره کښې‌له‌ګډون‌څخه ډډه وکړه چه ټاکل شوی وه دنظا می‌حکومت د تا سیس د کا لیزی پـه منا سبت و شـی له بلی‌خوا په مردان تخت بهأ ئی ، ملکنډ ، چکد ره ، خیبر او د پیښو ر د اور ګـا ډی په ټیسن‌کښې لاسی بموڼه اچول شوی اوزیا نونه ر سید لی دی .

**داپریدو ستری قومی جرګی :**

په باغ کښې یوه ستره قوی جرګـه شوی وه چه په هغی کښې د اپر یدو دقوم علماوو ملکانو ، نمایندګانو او نورو ډیرو خلکوګډو ن کړی ؤ. دغی جرګی دپاکستان‌دحکومت شوم او استعماری سیاست چه دپښتونستان دملت‌په مقابل کښی‌ئی نیولی دی وغانده‌اوکرکه ئی ورڅخه ښکاره کړه . جرګی دخپلو مجاهدو ورونو چه په‌میړانه ددغه‌استعماری‌حکومت په مقابل‌کښې کوښش کوی اودهغه‌دظلمونو سره مجادله‌کوی او دغه رنګه دخپلو باجوړیو ورونو سره چه په فوق العاده میړانه‌او شجاعت دپاکستان داستعما ری حکومت دتیر یو په مقابل کښې مقابله کوی خپله پوره همدردی او همکاری ښکاره کړ ی او ډاډ ئی ورکړ چه داپرید وقوم دژوندانه په دی جګړه‌کښې دخپلو دغوورونو سره ملګر ی اومتفق دی .

**پلونه ئی بیخی وران کړ ل :**

دمسعودو دبهلول زیو دقوم یوټو لګی ملی مجاهد ینودمحمد جان‌خان اوخیرمحمدخان په مشری دمیزان په ۲۷ نیټه په شویر تنګی نومی ځای کښې دوه پا خه پلو نه چه وا نه سروکی ، سپینټوی او دجنډولی سرك سره نښلو ی دچاودونکو موادو په واسطه خر ا ب کړل اوپه دغه ترڅ کښې یی ودغو چونیو تر منځ سرك خراب او بند کړ چه تقر یباً پنځه ورځی دترافیکو تګ او راتګ وربا ندی ځنډید لی ؤ . هغه وخت چه په دغو چو نیوکښې ملیشه افراد ددغه سرك دتر میم د پاره ووتل ، ملی مجاهدینو وربا ند ی ډزی وکړی او په نتیجه‌کی دمجاهدینو او ددښمن دقواؤ تر منځ جګړه و نښته او نژ دی پنځه ساعته ئی دوام وکړ په آخره کښې دپا کستان قواوی وروسته ترد ی چه زیا نو نه ور ور سیدل تیښتی ته مجبو ره‌شول .

**دپښتنو مجاهدینو فعا لیت :**

یو ټولکی ملی مجاهدینو دکوهاټ د ضلعی دهنګو دتحصیل مربوط دتو ر ی وړی په ملیشبایی توانه باندی لاسی بم واچاوه . همدارنګه د یو شمیر ملی مجاهد ینوله خواد کچه ګړی دټیسن په کمپ باندی چه داسلامیه‌کالج‌نه‌یومیل لیری دی لاسی واچول شو. دغه‌راز دپیښور په دولتی ماڼی کښی یو بم وچول شو چه د زیان در سیدلو باعث شوی دی .

**دښارپه‌نظامی کمپ باندی‌حمله :**

دچارمنګ یو شمیر ملی‌مجاهدینو دښاغلی ملك‌یوسف په‌مشری ، اودغه رنګه داتمانخیلو یوبل ټولګی ملی مجاهدینو دښا غلی ملك ګونګټ خان په مشری دښار په کمپ با ندی حمله وکړه‌اودډیروروستی‌حملی په‌اثرپه‌دغه کمپ کښی یو تن پاکستانی منصبدار ووژل شو او دملیشیاداافرادونه دوه تنه زخمیان شو ی دی . د ملی مجا هد ینو څخه هم د ما ټو کلی او سیدونکی داتما نخیلو سید رحمان زخمی شوی د ی .

**دپښتنو مجاهد ینودپیښور په هو ایی ډګر کښی یو بل بم چوولی دی :**

یوشمیر ملی مجاهدینو دپیښور په هوایی ډګر کښی لاسی بم وچا وه چه دهغه په اثر په مالی زیانونو سر بیره یوتن پاکستانی‌اجیرهم زخمی‌شوی دی . دغه راز دملی مجاهدینو له خوا دپیښور په ښار کښی‌دپاکستانی ما مورینو دیو مامور په‌کورکښی بم غور ځو ل شوی چه دهغه دچاودنی په وجه یو تن ز خمی شوی دی ،

**دنو ښارپه چوڼی کښی دپښتنومجاهدینوله خوادری‌تنه پنجابیان مړه شول:**

دپاکستان په اردوکښی دپښتنو او پنجابی افرادو تر مینځ مخالفت زیات شو ی د ی . دنو ښار په چوڼی کښی ددواړو خو اؤ ترمینځ نښته وشوه چه دهغی په اثر در ی تنه پنجابیان مړه شوی او څوتنه ئی ټپیان شوی د ی . دپښتنو افر ادو څخه هم یوتن وژل شوی او یو تن زخمی شوی دی . دغه راز داباړو په سیمه کښی‌دمجاهدینو له خوا څوبموونه چول شوي دی . یوی ډلی ملی مجاهدینو دکوهاټ دضلع دهنګو په تحصیل کښی د جنډي پوخ پل چه‌ګاډی ورباندی تله را تله دچاو دونکوموادو په واسطه وران‌کړیدی نوله‌همدی امله په‌دی سیمه کښی داورګاډی تګ او راتګ‌دوه ورځی وځنډید .

**دپښتنو مجاهدینو دمهریت‌دتهاڼی‌شپږ تنه ساتونکی و ژ لی دی :**

یوی ډلی ملی‌مجاهدینو پدی‌وختونکښی‌دداؤد زو په سیمه‌کښی په‌زیاته مسافه دبرېښناسیم شکولی‌دی اوپه دغه وخت کښی دملی مجا هدینو او د پاکستان دمسلحو سا تو نکو تر منځ سخته جګړه ونښتله چه‌دغه ساتونکوته دسرزیان ورسول شو ، دغه رازیو شمیر ملی مجاهدینو په چترال کښی دمهریت دپله په تهاڼه باندی لاسی بمونه وغور ځول چه دهغو په اثر دتهاڼی په خرابیدلو باندی سر بیره دټهاڼی شپږ تنه سا تونکی هم وو ژل شول .

دپاکستان استعماری حکومت دډؤد زواوسیدونکی ښاغلی شاد محمد مو مند دپا کستان داستعماری حکومت په ضد په عملی اقداماتوکښی دلاس لرلو په‌الزام په عمر ی بند‌محکوم کړی دی . دغه رازد دهلال نو» دمجلی مدیر ښاغلی جمیل اختر او ښا غلی محمد ا سمعیل ښاغلی میراسلم مومند ، ښاغلی معصوم ، ښاغلی خالد او ماستر عبدالرحیم هم دآ زا د ی خواهی داحساساتو او دپښتو نستان دملی ګوند له مشرانوسره دارتباط در لود لو په جرم ترسخت عذاب اوکړا ولاندی نیول شوی او دبند دمودی اودجریمی داندازی دټاکلو دپاره یی عسکری حکامو ته معرفی کړی دی .

### دیو پاکستانی تهاڼی دوه تنه ساتونکی وژل شوي دی:

یو شمیر ملی مجاهدینو دښاغلی امل زار خان په مشری دعقرب په نهمه د سر و کی په عسکری تهاڼه باندی ډزی وکړی . دملی مجاهدینو بلی د لی دپاکستان په یو سر کاری موټر باندی ډزی وکړی او دعسکری تهاڼی یوشمیر ساتونکی چه دپیښی ځای ته نژ د ی ووغو ښتل یې چه ددغه موټر دفاع و کړ ی په هغه جګړه کښی چه ددوی تر منځ و شوه دتهاڼی دوه ته تنه ساتونکی وژل شوی دی .

### دخان عبد الغفارخان دبند موده شپږمیاشتی نوره زیاته شو یده :

په پیښور کښی دلویدیز پاکستان نایب‌الحکومه‌ویلی دی‌چه‌د پښتو نستان دسترمشرخان عبدالغفار خان دبند موده شپږ میاشتی زیاته شویده ، ددغه خبراوریدلودپښتونستا ن‌په ملی ټولنو کښی ډیری ناوړی اغیزی کړی او دپښتو نستان په بیلو بیلو سیمو کښی یې حا لات ډیر وران کړیدی .

### په مرکزی پښتونستان‌کښی امنیت بیخی خراب دی :

دمر کزی پښتو نستان محلی حا کمانو ر سما اقرارکړی دی چه په‌دغه‌ولایت‌کښی امنیت بیخی خراب دی او سبز کال دمرګ اوژوبلی پیښی د تیرو کلونو په نسبت یې ساری دی. دپیښور مطبوعاتو په دغه موضوع تبصره کړی او لیکلی یې د ی چه د دی بی ا منیتی علت دمر کزی‌محکوم پښتو نستان دخلکو رو حی او ا قتصادی پریشانی ده .دپیښوریوټولګی‌خلکو دلویدیز پاکستان نایب الحکومه ته دبیکاری او دهغه سخت کنترول څخه چه د پا کستا ن حکومت دمحکوم پښتو نستان په سیمه باندی دصنعت او تجارت په ساحه کښی ټینګه کړ ی دی ، شکایت وکړ .

### دمسعودو مجاهد ینوڅلور تنه پاکستانی‌عسکروژلی او اوه تنه یې‌ټپیان کړیدی :

دمسعودو یوشمـیر ملی مجاهد ینو د ښا غلی ملك خیر محمد په لار ښودنه دتا نک په عسکری چوڼی باندی څو لاسی بمونه وغور ځول چه دهغو په وجه په‌مالی زیانونو سر بیره څلور تنه عسکر وژل شوی‌اووه تنه ز خمیان شول .

### پرو فیسور حبیب الرحمن قلندر مومند او سلطان محمود قلندر بند یان شوی‌دی:

د پاکستان استعماری حکو مت پر و فیسور حبیب الرحمن قلندر مومند نیولی او یو نامعلوم محبس ته یې لیږلی دی. او دپښتو مشهو ر شاعر دبهه بیری اوسیدو نکی ښاغلی سلطان محمود قلند ر هم بند ی شوی دی.

### وز یرومجاهد ینودیوی پاکستانی‌چوڼی‌ خوتنه عسکروژلی‌دی.

دوز یرو دمحمود خیلو ،طوری‌خیلو د بهلو ل زیو دقو م یو ټو لګی ملی مجا هد ینو دښاغلی خیر محمد خان په مشری په چاودید ونکو موادو سره ددوه‌څلی دچوڼی‌یوه برخه

خرابه کړیده دغه رنګه دد غه قوم یو بل ټولګی ملی مجاهد ینو دشیخ ګر می په چو ئی باندی حمله و کړه او په هغه جګړه کښې چه دملی مجاهدینو اودچو نی‌دساتونکو ترمنځ وشوه دپاکستا نی عسکرومه‌څوتنه‌وژل‌شوی اوڅو تنه‌هم زخمیان شویدی.

### دسلطان‌خیلو او پا ینده خیلو جرګه:

دسلطان خیلو او پاینده خیلو د قبیلو له خوا یوه ستره جر ګه و شو او په هغې پسې دمحلی ټولنو په ډول پرله پسې ډیر ی جرګی وشوی او درایو په اتفاق تصمیم و نیول شو چه ددیر خلك په هیڅ وجه دپاکستانی استعمار اسارت ته غاړه نه کښیږ دی اودخپل ژوند تر رروستنی سلګی پوری دخپلی آزادی جګړی ته دوام ور کړی . ددغو جرګو په‌بل‌تصمیم کښې یې هغه وضعیت اورو په غندلی وه چه دپاکستان استعما ری حکومت دد یرو عا لیجاه نواب او ددوی دزوی دجندول خان په مقابل کښې‌نیو لی‌ده‌اوهم ئی دا په کلکه غندلی‌ده چه دوی‌ئی‌نیو لی اودیو تعرض په‌اثر ئی ددیر اوجندول خاوره لا س ته راوړی ده جر ګی وغوښتل چه دغه حکومت دی ژر تر ژره دوی خوشی کړی .

### څلورتنه پاکستانی‌عسکر یې ووژل:

ددیر ریاست مربوط یو ستر ټولګی ملی‌مجاهدینوددیر په‌عسکری‌کمپ باندی‌حمله‌وکړه او دهغې خونړی‌جګړی په نتیجه کښې چه ددواړو خواؤ ترمنځ وشوه څلور تنه پاکستا نی عسکر وژل شو ی او یو شمیر نور زخمیا ن شوی دي. دغه رازد ملی مجاهد ینو بل ټو لګی دقاشقاری ،پته کوټ کولندی کلی او په مشنګنو کڅ کښی‌یوه دولتی ودانی سو ځلی‌ده .

دپاکستانی استعماری حکومت په وروستیو و ختو کښې دد یر او سنی نوا ب شهز اده محمد خسرو خا ن خپل ځان‌ته بللی او دی یی تر فشار لاند ی نیولی دی .

همدارنګه داتمانځیلو ټولو قبائلو دنمایندګانو په ګډون یوه ستره قومی جرګه‌وشوه او یوځل بیا تصمیم پکښې ونیول شو چه په ګډه او پوره‌اتفاق سره دپاکستان داستعمار ی تیری په مقابل کښې خپلی مجاهدی اوجګړی ته دوام ور کړی.

### دپښتونستان دسیاسی‌بندیانوصحی‌حالت ډیرخراب‌دی:

دپاکستان په استعماری محبسو نوکښې ښاغلی میر مهدی شاه مهدی،ښاغلی اجمل خټك دګل آباد ښاغلی یار محمد خان او ښاغلی عاشق شاباچا ډیرسخت ناروغ دی اودپاکستان دحکومت له خوا ددوی دتداوی په باب کښې کوم جزیی اقدام نه کیږی .

### دپاکستان استعماری حکومت ددوو کلیو دخلکوځمکې ضبطی کړی‌دی:

دپاکستان استعماری حکومت پدغو وختوکښې دلندی بیرغچو او دبهادر دکلی دخلکو ځمکی په بهانو او ددولتی نقشو په تیره بیا دنظامی چاروپه عنوان ضبطی کړ یدی . ددغو کلیو دخلکو دپا کستان داستعماری حکومت ددغه متجاوزا نه او ظالمانهٔ اقدا م په وجه په ګډه احتجاج کړ ن اومخالفت یې څرګند کړی دی دپاکستان استعماری حکو مت یوزیات شمیر احتجا ج کوونکی کسان بندیان کړیدی.

### دسالارزیو په ستره قومی جرگه کښی :

په دری زیارت نومی ځای کښی دسالار زیو دقوم یوه ستره جرگه شوی وه او وروسته تردی چه دقوم مشرانو اوعلماوو تودی وینا وی وکړ ی دا فیصله وشوه چه هرکله دباجوړ خلك اودپښتونستان نورخلك دپاکستان داستعماری حکومت سره د جنگ په حالت کښی دی له دی کبله هر هغه څوك چه دپاکستا ن داستعماری حکومت سره د خپلی شخصی گټی په غرض ارتباط ولری او دهغه استعماری حکومت دآ لی په حیث ا ستخدام شی دقومی دودونو سره سم دټول قوم په نزدمجرم اوگناهگار شمیرل کیږی او درنه جزابه ورکړ شی.

### دباجوړ دعلماو اعلان:

دغه رنگه دباجوړ علماو واعلان وکړ چه هرهغه څوك چه دپا کستان دلاس دآلی په حیث ثابت شی نو دباجوړ علما دهغوی دجنازی په لمونځ کښی گډون نکوی.

### دپاکستان استعماری حکومت دشنگر گل په کلی کښی سختی بمباری کړی دی

دپاکستان استعما ر ی حکومت دقو س په دیا ر لسمه نیټه دسا لار ز یو په سیمه کښی دشنگر گل په کلی باندی سختی بمباری کړید ی چه هغه کلی او څو نورشاؤخوا کلی یی وران او سوځیدلی دی . ددی بمباری په اثر دښاغلی عبد السلام ز و ی اوښاغلی رحیم گل زخمیان شوی اودهغه ځای بیدفاعو خلکوته هم ډیر مالی زیانو نه رسیدلی دی.

یوشمیر ملی مجاهدینو په کورمه کښی دللمی پوخ پل دچاودیدونکو موادو په واسطه وران کړ چه دترافیکو له استفادی نه وتلی دی.

### دحلیمزوو دمشرانو فیصله :

په میا مندهی کښی دگندداو دحلیمزیو دقوم مشرانو او نوروخلکو ستره جرگه کړی وه اوپه هغه کښی دقوم دمشرانو اوعلماوله خو مهمی اوجذابی وینا وی وشوی په پای کښی درایو په اتفاق تصویب وشو چه حلیمزی په هیڅ وجه په خپله سیمه کښی دپاکستان داستعماری حکومت دزیاتو مداخلو تحمل نشی کو لی او دپاکستا ن دحکومت د استعمار ی هرډو ل تیر یو په مقابل کښی به دسر اومال په بیهودریږی اومقاومت به وکړی.

### دمرکزی محکوم پښتونستان ټول پښتانه مستخدمین دی رطرف شی:

دپاکستان استعماری حکومت دیو قطعی فر مان په وا سطه امر کړی دی چه دمرکزی محکوم پښتونستان دولایت ټول پښتانه مستخدمین دی له ملازمت او استخدامه رطرف کړی شی ددغه اقدام علت دادی چه دپاکستان استعماری حکومت پدی پو هیږی چه دغه طبقه کا مله دپښتونستان په ملی محاذ اوتحریك پوری مربوطه د ه او د هغه پیښی چه په هغه ولایت کښی پرله پسی کیږی دوی په هغو کښی لوی لاس او برخه اری .ددغه ولایت دمطبوعاتو دخبرله مخی دهغه حکومت دغه اقدام دهغه ولایت په بیلو بیلو طبقو خلکو کښی ډیربدتاثیر کړی اودولتی مقاماتو ددغه هیجان له تفصیل څخه مرکزی حکومت تهر پوټ ورکړ یدی.

## دپاکستان د نظامي محکمې نوی فیصلې :

د پاکستان نظامي محکمې ددسمبر په پنځمه نیټه چه د قوس ۱۴ نیټه کیږي لس تنه پښتانه اخبار لیکونکي او یو زیات شمیر شاعران اوکاپي لیکونکي دپښتونستان دآزادي دطرفداري په گناه سربېره پدې چه په لرگوبې وهلي اوټول جایدادونه اوشته يې ضبط کړي دي دسخت بند په بېلوبېلو مودو چه دځینو دبند موده تر ۱۴ کاله پورې ده محکوم کړي دي .

د آزادي غوښتونکو د نیولو اوبندي کولو سلسله اوس هم روانه ده د پېښور د انجام ورځپانه لیکي چه په مرکزي محکوم پښتونستان کښې دری سوه تنه پښتانه ادیبان، لیکوال او شاعران تر تعقیب لاندې دي او ژر به ونیول شي او محاکمه به شي د انجام ورځپاڼې چاپ شوی احصاییه ښرگندوي چه په سلو کښې څه ناڅه اتیا پښتانه لیکوال جریده لیکونکي ادیبان او کاپي لیکونکي دپاکستا ن د استعماري حکو مت سره په مبا ر ز ه کښې دي اوحکومت دوی تړي او زولانه کو ي .

## دغیر اسلامي اقداماتو په ضد د محکوم پښتونستان دعلماؤ اوروحانیونو تبلیغات زیات شوي دي :

په محکوم پښتونستان کښې دپاکستان دحکومت داسلامي ضد واقداماتو په خلاف دعلماؤ اومذهبي روحانیونو تبلیغات ډیراوزیات شوي دي اودموعظو په کولوسربېره دجلاجلا نشریو په ترڅ کښې چه په زرگونو نسخې چاپ او ویشل کیږي دپښتونستان خلکو ته بلنه ورکوله کیږي چه دپاکستان داسلام دښمن اواستعماري حکومت په ضد په مبارزه کښې ډیر برخه واخلي اوداستعمار له منگولې نه دخپل ملت دخلاصولو دپاره هرډول قرباني ورکړي دپاکستان استعمار حکومت علماؤ اوروحانیون دغه حرکت په وجه پریشان اووار خطاشوي دي او په دغه وروستیو وختو کښې یې د محکوم پښتو نستان په ټولو سیمو کښې اعلی حاکمانو اواعلی حاکمانو معاونانو پولیټکل ایجنټیانو او نو رو اداري مامو ر ینو ته ټینگه امر صادر کړ ی د ی چه ددغې طبقې په تگ او را تگ اوگرځیدلو باندې خپل کنتر و ل لاپسې ټینگ او سخت کړ ی اوخلکواو نقلیه وسایلو تلاشي په جدیت اوپه ټینگه سره وکړي دغه راز دپاکستان داستعماري حکومت په ضدد نشریو دخپریدلو اوویشلو ددوام دمخنیولو دپاره و دغه حاکمانو ته ډیر واك اواختیارات ورکړی شوي دي .

## د ډیرمجاهدینو په ډیر پړاو کښې دپاکستان یوشمیر نظامي افراد وژلي دي :

دقوس په شلمه نیټه یوشمیر ملي مجاهدینو په «ډیر پړاو» باندې څو لاسي بمو ه وغورځول چه دهغو په وجه دپاکستان دنظامي قواؤنه یوشمیره کسان وژل شوي اوزخمیان شوي دي دچترال خبر ښرگندوي چه یوشمیر ملي مجاهدینو د «اشریت» په عسکري قرارگاه باندې لاسي بمو نه غورځو لي او پا کستا ني قواؤ نه يې تلفات رسولي یوي بلې ملي مجا هدینو دهغه سړك یوه بله برخه خرابه کړې ده چه دپاکستان داستعماري حکومت له خوا د «سدې» په سیمه کښې نوی جوړ شوی دی په نتیجه کښې ددغه سړك دساتونکو سره يې نښته وشو ه .

**دپښتنو عالمانو غونډې دمولوی اشرف خان دخوشی کولو غوښتنه و کړه :**

دمردان دضلع مربوط دصوابی په تحصیل کښی دعلماو ویوه ستره غونډه وشوه او دجذابو او هیجان پیدا کونکو وینااو د کیدلو نه وروسته د رأیو په اتفاق دپاکستان داستعماری حکومت نه دمولوی اشرف خان دسمدستی خوشی کولو غوښتنه وشوه په غوښتن لیك کښی ویل شویدی چه دغه عالم ددینی موعظی دکولو په وجه دپاکستان دحکومت له خوا بندی شویدی اودغه اقدا مواضحه څر ګندوی چه دپاکستان حکومت غواړی چه علماء دوعظ تبلیغ او دامر بالمعروف نه منع کړی. غوښتن لیك دپاکستان حکومت ته اخطار ور کوی چه په دغه صور ت کښی به دپښتو نستان علماء دټول قوم په ملاتړ په مبارزه لاس پوری کړی د بیونو چاود نودبیا بیا پیښو په واسطه دپاکستان حکومت دقوم دمشرانو اومخورو اودجامعو جوماتو نو له خطیبانو نه نقدی ضما نتو نه غو ښتی دی چه که چیـری داسی واقعا ت بیا پیښ شی ددوی پو لی ضمانتو نه ضبط کړی .

**دسور کمر یو مخور پښتون بندی شویدی ،**

دپاکستان استعماری حکومت پدی وختو کښی دسور کمر دکلاګی اوسیدونـکی ښاغلی ولایت خان سایی چه دهغه ځای یو مخور او بارسوخه ملك دی اودعلاج دپاره پیښورته تللیؤ اودهغه ځای په یوه هوټل کښی اوسیده ، بندی کړیدی .

**دپاکستان داستعماری حکومت له خوا د مومند و قوم ته اخطار:**

د پا کستان استعماری حکومت د مومندو قوم ته اخطار ور کړی چه که چیر ی ددغه حکومت پروګرام ته غاړه کښیږ د ی د پاګستان حکومت به خپل پرو ګرام په زور اود بمباریو په کولو اجراء کړی . دمومندو خلکو ، دپاکستان دحکومت د غه تهدید په کله سره رد کړی اوویلی یی دی چه دپاکستان دحکومت دهرډول تیر یو په مقابل کی دڅوند تر وروستی سلـګی پوری به مقاومت وکړی. دمومندو دملی مجاهدینو ټولـګیو وغونډ سر نیاڼونه ، مغل خیلو ، مونډه بـر جونو ، تنګی او یکله غونډ ـ په ټاټوبانډی دزی ګړیدی دغه رازیو یو شمیر ملی مجاهدینو د ز یارت په تاڼه باندی لاسی بمونه اچولی دی چه په نتیجه کښی پا کستا نو قواؤ ته تا وانونه ر سیدلی دی . په هغه نښته کښی چه د ملی مجاهدینو او ددغی تاڼی دساتو نـکو ترمنځ ددغه اقدام په اثر وشوه له ملی مجاهدینو څخه دوه تنه ژوبل شوی دی ،

**د منځنی پښتونستان د ټولو قبیلو په ستره قومی جرګه کښی فیصله وشوه چه دپښتونستان ملت دپردیو داسارت جغ ندی منلی اونه به یی ومنی :**

دمنځنی پښتونستان د ټولو قبیـلو لـکه د وزیرو مسیـد و ، بیټنی او د ورو دقومونو یوه سـره جرګه په ګرویك کښی دمرحوم الحاج دایپی دفقیر دوراره عالیجاه نیاز علیخان په مشری وشوه اوپه هغی کی دقوم دعلماو اومخورو اونما یندګانو لـه خوا دآزادی دحاصلولو

اوساتنې په لاره کښې دمجاهدو اوقربانيو ورکولو د لزوم په باره کښې موېجې وينا وې وشوې چه دحاضرينو له خوا په ډېر حرارت استقباليدلې ، جرګې دوينااو دکيدو نه وروسته د رأيو په اتفاق تصويب وکړ چه د پښتونستان ملت د پرديو د اسارت جـنګ ندی منلی او نه به يې ومنې دپښتونستان ملت به دخپلې ټولې خاورې د آزادۍ دحاصلولو اوساتنې په لاره کښې خپلې ملي مبارزې ته دوام ورکړې او هرډول قربانيو ورکولوته به غاړه کيږدي . جرګې د پاکستان استعماري حکومت ته اخطار ور کړ چه که چيرې د استعمار غوښتنې دسياست نه لاس وانه اخلي نودوخپمو نتيجو سره به مخامخ شي. جرګې دنړۍ حريت غوښونکو ټولنو اوملتوته بلنه ورکړه چه دپښتونستان دملت سره دخپلوحقه حقوقو دحاصلو او په لاره کښې داخلاقي اوبشري همکاريو نه ځان ونه ژغوري . . جرګې دافغانستان له حکومت اوملت نه شکريه وکړه چه تل يې دپښتونستان دملت دفطري حقوقو ملاتړ اوطرفداري کړی اودهغه ملت غبز يې دنړۍ دخلـکو غوږونوته رسولی دی .

## په پيښور کښې پوشمير نور پښتانه آزادی غوښتونـکي نيول شوي دي :

پدی وختو کښې دپيښور په ښارکښې يوشمير کسان دپا کستان دملـکي قوانينو داطاعت نه کولو دتحريك په سلسله چه له ۹ مياشتو را پدی خوادمحکوم پښتونستان دآزادي غوښتو نـکو خلـکو له خو روانه ده نيول شو ی او بند يخانې ته ليږ ل شوي دي چه دپيښور د ښارپه حساسو ځايو کښې يې خطابې ورکولې اود پاکـتان داستعماري حکومت په ضد يې ويناوې کـولې . بل خبر وايي چه ښاغلي تمـاس خان ، ښاغلي گلو خان ، ښا غلي ثمين ګـل، ښاغلي آدم خان،ښاغلي تميزخان، ښاغلي بهرام خان،ښاغلي رشيدخان، ښاغلي مستي خان اود هغو څلور تنه ملګرې چه د کوهاټ دضلع دغلي او بورې په دېپو کښې يې كار كاؤ و دپاكستان دحکو مت له خوا بنديان شوي اود کوهاټ بند يخانې ته ليږل شوي دي . دد وي دګرفتارۍ وجه دهغه يوه لاسي بم موندل دی، چه پدغه ديپو کښې له چاودنې نه مخ کښې بوليسو ته په لاس ور غلی د ی .

### دجدی په میاشت کښې

## په مرکزي محکوم پښتو نستان کښې مظاهرې وشوې :

له پېښور دتحصيل دچار سدی اودمردان دضلع خلکو مظا هرې دعلماؤ اوړا حا نيونو په مشرۍ وشوې خلکوپه دغو مظاهروکښې دپاکستان داستعماري حکومت دظلمونو اودپاکستاني حکامو داسلام دښمنۍ داوامر ويه ضدناری وهلې اوپه لوړ اواز يې ويل چه مونږ به دژوند تر ورستي لحظې پورې دپاکستان دظلمو نو اواسلام دښمنۍ په ضد مبارزه وکړو .

## پوشمير پښتانه مشران بنديان شويدي :

دپښور دمصادره شوی جمهوريت نومي مجلې مالك ښاغلي حاجي خانمير هلالي،ښاغلي اكرا ښاغلي رضا خان، ښاغلي، گل كمال ، اوښاغلي محمداسلم دپاكستان داستعماري حكو مت لەخوا بنديان شوی دی . دغه كسان څو مياشتې پخوا هم دآزادی غوښتنې دفعا ليت په اثر دپاكستان دحكومت لەخوا بنديان شوي او له يوې مودې بندنه وروسته خوش شوي ؤ .

### دپاکستان داستعماری‌حکومت بدگمانی :

دپښتنو او بلوڅو په‌عسکری افرادو او منصبد ارانو باندی دپاکستان داستعماری حکومت بی اعتمادی او بدگمانی خپل آخرنی حدته رسیدلی ده او په دی ورستیو وختو کښی دوغو طبقو دمصبدارانو ستره برخه دپاکستان داستعماری حکومت له‌خوا ځینی بنګال ته‌تبدیل‌شوی او ځینو ته تقاعدورکړی‌شوی دی

### ددیر په ریاست کښی حالات بحرانی دی :

ددیر په‌ریاست کښی حالات خړپړ او بحرانی شوی دی اودپاکستان استعمار ی حکومت په‌دغه ملت دسلطان خیلو او باینده خیلو دقبایلو په عمومی گرفتار یو پیل کړی دی چه دغه قبیلی دپاکستان داستعماری حکومت په‌مقابل کښی پورته شوی دی اودغو قبایلو نه هرفرد چه‌ددیر په‌ریاست په‌حکومه سیمه‌کښی ولیدل شی سمدستی بندی اومحبس‌ته‌لیږل کیږی .
دپاکستان استعماری حکومت‌دویرریاست یومشهورخان داوشیری‌ددری دسم کوت او سیدونکی ښاغلی ملیزی خان‌اودهغه ځای‌یومشهور سړی‌ښاغلی کاکت ملك دآزادی غوښتنی د فعالیت په‌گناه بندیان کړی‌اودپښور محبس‌ته‌یی لیږلی‌دی. دملیزی‌خان‌ورو ردسم کوټ‌او سیدونکی ښاغلی زمین خان هم تر نظارت لاندی نیول شوی دی .

### پښتنو مجاهد ینود کوهاټ دهنگو تحصیل دحاکم‌کو رته اوراچولی‌دی:

دملی مجاهدینو یوټولګی دکوهاټ دضلع‌مربوط دهنگو په تحصیل‌کښی دهنگو دحاکم داستوگنی کورته اوراچولی دی اودملی مجاهد ینو یوټولګی دمونږی اوباوړی په‌کمپلاسی بمونه واچول .

### دپښتونستان‌دملی مجاهدینو په بیلو بیلو سیموکښی‌دخپلوحملو په‌اثر دښمن قواؤ ته‌تاوانونه‌ورواړول :

دوزیرو او اتمانزو دقوم یوټولګی ملی مجاهدینو دمیرعلی په سیمه‌کښی دتیلفون ستنی له مینځه وړی دی . دغه راز یوټولګی آزادی غوښتونکو دوانی په عسکری چوڼی ډزی کړی دی چه دد ښمن قواؤ په درندو وسلو ځواب ورکړی دی دغه راز دمسعودو دقوم دملی مجاهدینودلو دښاغلی خیر محمد خان په مشری وانی ته نژدی یوپوخ پل دچاود یدونکو موادو په واسطه له مینځه وړی دی .

### په دیره‌اسمعیل‌خان‌کښی :

ددغو مجاهد ینو یل ټولګی په دیره اسمعیل کښی د پا کستان د استعمار ی حکومت یوسرو یس په چاود یدونکو موادو سره زیانمن کړی دی چه ددغی پیښی په اثر دپاکستان حکومت دری ورځی دمجاهد ینو دگرفتاری په لټه کښی ؤ ، خو ټول ملی مجاهد ین بیرته خپلو ځا یوته لاړل . دغه راز دملی مجاهدینو بل گروپ د دغه مجاهد په لار ښوو نه دچاود یدونکو موادو په واسطه دلدی دعسکری‌چوڼی څوبرخی‌ورانی کړی‌دی چه په‌دی‌وجه د ملی مجاهد ینو اودچوڼی دساتونکو تر منځ نښته وشوه او رسیدلی تاوان یی تر اوسه پوری معلوم نه دی .

### دچندولی پل یی زیانمن کړ :

دغو مجاهدینو بل گروپ دچندولی چوڼۍ ته نږدې پل په خرابوونکو موادو زیانمن کړی دی . دملی مجاهدینو بل ټولگی دسپیلتوی په عسکری چوڼۍ حملا وکړه چه دملی مجاهدینو اودغو عسکرو ترمنځ نښتې څو ساعته دوام وکړ چه په نتیجه کښې د دښمن له قواوو څخه څو تنه عسکر ټپیان شول. یوبل ټولگی ملی مجاهدینو دغه مجاهد خیرمحمد خان په مشرۍ د گنډی پوځ پل چه دلدی اومیرانۍ چوڼۍ سره نښلوی په تخریبی موادو وران کړی دی چه دهغه په اثر دملی مجاهدینو او ددغه پله دساتونکو ترمنځ نښته وشوه چه په نتیجه کښې ساتونکوماتې وکړه اوآزادی غوښتونکو چوڼۍ وسوزوله.

### ددیرملی مجاهدینو څوتنه پاکستانی عسکر وژلی او ټپیان کړیدی :

دپښتونستان یوټولگی ملی مجاهدینو دواړی په سیمه کښې دپاکستان په یوشمیر عسکری افرادو حمله وکړه اودهغې نښتې په نتیجه کښې چه ددوی ترمنځ وشوه څوتنه پاکستانی عسکر وژل شوی اوزخمیان شوی دی.

### دتلگراف ستنې یی له منځه وړی دی :

یوشمیرملی مجاهدینو دنوشکی په خنیزه سیمه کښې دتلگراف ستنې اودهغوی مزی له منځه یووړل اودهغه په اثر دپاکستان استعماری حکومت دنوشکی اوسیدونکی ښاغلی حاصل خان جمعدار ښاغلی میرکرم رساله دار ښاغلی زنگی خان اوښاغلی عبدالقادر خان بندیان کړی دی

### دپښتونستانی علماؤ اوملی مشرانو په جرگه کښې :

دپښته خری په کلی کښې دعلماوو اومشهورکسانو ستره ټولنه شوی وه چه په هغې کښې دپښتونستان دعلماؤله خوا دپاکستان دحکومت داسلام دښمنی احکام اواجرا آت سخت وغندل شول په جرگه کښې دمظلومونو په نسبت سخته خوا شینی شوی ده چه دمحکوم پښتونستان په آزادی غوښتونکو باندی دپاکستان استعماری حکومت کړی اوکوی یی دپاکستان استعماری حکومت جناب مولوی زیارت گل په دغه الزام بندی کړی دی چه دجرگې په کیدو کښې کوښښ کړی دی .

### په بېره بیره کښې جرگه :

دبوادرچرمیښی کندی اوسربلند په کلیو کښې هم دعلماوو ادیبانو اومخورو ټولنې وشوی اودجرگو شاملینو دپاکستان دحکومت داستعماری اقداماتو او غیراسلامی اوامرو سره خپل سخت مخالفت اعلام کړ په دغو ټولنو کښې دشاو خواسیمو خلکو هم گډون کړی ؤ چه دعلماوو ادیبانو اومخورو تصویبونه یی په فوق العاده حرارت استقبال کړل .

### دبرول عسکری سړك یی وران کړ:

یوشمیرملی مجاهدینو دبرول په سیمه کښې عسکری سړك په څوځایو کښې وران کړی دی چه دترافیکو تگ راتگه وربانده ی بند شوی دی . داتماڼخیلو یو شمیر ملی مجاهدینو د

دښاغلی ملك نورمحمد په مشری دېلامیت پهیوخ اومشهوریل باندی لا سی بمو نه وغورځول چه دهغو دچاودنو په اثر دیل دسأتونکو نه اوه تنه وژل شوی اویازخمیان شوی اودغهیله ته هم داسی سخت زیان رسولی دی چه دترا فیـکوتـګ او را تګـګ ور با ند ی چـور لټ ځنډ یدلی دی .

**دماموندو دقبیلی مبارزی:**

دچینګی په کلی کښی دماموندو دقبیلی یوه ستره جرګه وشو ه اویوځل بیایی تاییدکړه چه دماموندو قبیله به خپلو ملی مبا رزوته تر هغه و خته پو ری دوام ورکـړی ترڅو چـه پښتونستان تشکیلاوآزادیی حاصلهشی اوپهدغهلاره کښی به دهیڅ ډول قربانۍ ورکولو څخه غاړه و نه غړوی .

**یوشمیرنورپښتانهمشران اوعلمابندیان شول :**

دپاکستان استعماری حکومت دعلی خیلو دقوم مربوط ښاغلی ملك سید حسن او ښا غلـی ملك ظفرخان دپښتونستان دآزادی په لاره کښی دمجاهدانه فعا لیـت پهګناه بندیـان کړ ل اودبندومحبس ته یی لیږلی دی . دپاکستان استعماری حکومت دمسوزیو اوسپدونکی ښا غلی مولوی نصرالدین اودمرکزی محکوم پښتونستان ۹ تنه نورکره او مشهـو ر علما وو هـغو وروستیومظاهرودتنظیم ا و ا هتما م په الزام چه په زرګو نو خلـکو په کښی ګـډون کـړی او ژوندی دی وی پښتونستان ناری یی وهلی بند یان کړ ی دی دغه را ز پد ی و ختوکښی دپاکستان داستعماری حکومت لخوا په مرکزی محکوم پښتونستان کښی پراخیګر فتا ر ی شوی دی.

**دبیټنی خلکودپاکستان دحکومت استعماری سیاست غند لی دی :**

دبیټنیخلکو پهیوه جرګه کښی تصویب کړی دی چه دپاکستان حکومت استعماری اوداسلام دښمنیسیاـت پهکلکه سره غند ی اوځرنګه چه دپښتونستان دملت غو ښتنه دبشری حقوقو داصولو اودانسانی کرامت دساتنی سره کلکه مطابقه ده له دی کبله د بیټنو غیر تمنی قبـیلی یوځلبیاتاییدکړه چه پخپله ټول قوت سره په دغه لاره کښی خپلی ملیمبارزی تهدوامورکړی اودهیڅ ډول قربانیورکولواوڅخه ډډه ونهکړ ی .

**پښتانه نورمظلو میت ته غا ړه نږ دی :**

دآزاد منځنیپښتونستان دټولوقبایلو لوی اوتاریخیجرګیدمرحوم حاجیمیرزا علیخان دورارم عالیجاه نیازعلی خان په مشری شروع شوی اوسلسله یی او س هم روا نه د ه پههغه جرګه کښی چهدمسعودو دقبیلی دزرګونوعلماو ووکیلانوملکانواو نوروخلکو پهګډون شوی وه جناب عالیجاه نیازعلی خان دپښتونستان په ملت باندی د پاکستان داستعما ر ی حکومت دتیریو اوظلمونو اوددغو استعماری تجاو زونو سـر ه دسختی مقابلی د لز و م په با ره کښی ویناوکړه . پس له هغه مولانا عجب خان مولاناعبد المطلب خان خلیفهګلبادخان ښا غلی ګلبازخان ښاغلی ظهورالدین اوښاغلی سعدی خان هم په وارسره مؤثر ی وینا و ی وکړ ی

دجرگې په پای کښې درأیو په اتفاق تصویب وشو چه بیا بیادپاکستان اشغالگر عمالو ته وېل شوېدی په دغه عصرکښې چه داستعمار ترسلطې لاندی ملتو نه دبشری عدالت په اساس یو په بل پسې خپلې آزادی ته رسیږی باید دپاکستان استعماری حکومت دپښتو نستان په ملت باندی له تیر یو اوحق تلفیو څخه ځان وژغوری مگرهغوی خپل ظلمونه او تیری پسې زیات کړی اودباجود په حق غوښتو نکو اوبی دفاعو خلکو باندې یې سختې بمباری اودپښتو نستان په نوروسیمو کښې ئې هم وحشیانه حملې اوبی رحمانه بمباری کړی دی .له دی کبله نورنشو کو لی چه مظلومیت ته‌غاړه کیږدو ،ونېزهیله اروچه دپاك خدای په مرسته دخپلې سربازی اوفداکاری په دوام دخپل گران وطن دخپلواکی اودملی شرف به حاصلولو بریالی شو . جرگې دغه رنگه فیصله وکړه چه دبشردنسل بقا اوپاتی‌کید ل په عمومی امنیت پوره سولې اودفردی اواجتماعی حقوقو په احترام پوری مربوط دی په داسې حال کښې چه موږنیز مشروع حقوق او فطری آزادی دخطرسره مخامخ ده مجبوریو چه‌په عملی‌او ټینگو اقداماتو لاس پوری کړو په هغه‌صورت کښې به دغوټولو ناوړو پېښو مسئول پاکستانی حکومت‌وی، جرگې فیصله‌وکړه چه افغانستان اسلامی ملت اوحکومت چه‌زموږنېزددینی اودنیوی شریك ورو په صفت په دی لاره کښې خپلې اخلاقی مرستې اه موږنېز څخه ندی سپمولی خپلې‌صمیمی‌شکری هغوی ته‌رسوو اوامید لروچه په راتلونکی وخت کښې هم‌له خپلې موربانی‌څخه‌موږنېزممنون کړی اوزموږ نېز دمظلومیت غږ نړی اودنړی خلکوته ورسوی .

## دپښتو ټولی هفتواری اومیاشتنی مجلې دپاکستان د حکومتی مقاماتو لخوا مصادره شویدی :

دمرکزی محکوم پښتو نستان دپېښور اردو اخبارونو پخپلو وروستیو گڼو کښې څرگنده کړی ده چه دپاکستان حکومتی مقاماتو دپښتوټولی هفته واری اومیاشتنی مجلې چه په هغه ځای کښې چاپید لې مصادره کړې اودهغو دنشر یدلوامتیازونه یې ضبط اومنسوخ کړی دی دغه جریدی لیکی چه‌دپښتودټولو مجلواود هغو جریدوفورست چه په پښتواواردو دوژبو خپریدلې پخوا ترتیب شوی اودغه ټولی مجلی او جریدې دلار اوننگیا لی میا شتنو مجلو اود دوران ،هلال نو ،جمهوریت غنچې ،رهبرد هفته‌وارو مجلو او داردو جریدی «آزادی» په شمول د مصادری تر احکامو لاندی راغلی‌دی پخوا هم دپا کستان استعمار ی حکومت دپښتو مجلې آزادی او «اسلم» مصادره کړی اوهم‌یې «دپښتون» مجله چه‌د خدایی خدمتگار دگوند داورگان په حیث‌خپریدله ضبط کړی‌ده‌اوسربیره پدی دمحکوم پښتونستان دپیاوړو اوستړو لیکوالوادبی آثار اود اشعارو دیوانونه هم دپاکستان داستعماری حکومت له خوا ضبط اومصادره شوی‌دی .

## دآزاد منځنی پښتونستان تاریخی جرگه:

دوزیرو اود وړو دقبیلو اودبنو دخلکو یوه ستره جرگه دزر گوتو کسانو په گډون اودعلماوو،وکیلانو،اومخورو په‌شمول(دماما په‌زیارت) کښې‌دمرحوم حاجی‌میرزاعلی‌خان‌دوراره

عالیجاه نیاز علی‌خان په‌مشری شوی وه ،جرگی دپښتونستان موضوع دمنځنی ختیز دستر و اواوله درجه مسألو څخه بللی اودنړی‌دټولو سوله غوښتو نـکو او آز ادی خو ښو و نکو ټولنو څخه ئی هیله کړی‌ده چه دپښتونستان دآزادی په‌لاره کښی له خپلی‌همکاری نه‌غاړه ونه‌غړوی ،عالیجاه نیازعلی‌خان دخپلی موېجی ویناوی په‌ترځ کښی وو یل چه‌د پښتو نستان په ملت باند ی دپاکستان داستعماری حکومت ظلمونه اوتیری دومره زیات شو ی د ی چه دپښتونستان‌په‌ملت باندی ئی دژوندانه‌لار ه تړلی‌ده په زرگونو خلك د ملی مشرانو،علماوو اد یبانو ، مفکرینو ،خوانینو ،روحانیونواودملی رضاکارانو په‌شمول دپاکستان په‌محبسونو کښی په رقت پیدا کوونـکی حالت پراته دی اوټول جایدادونه اوشتمنی‌ئی ضبطی شوی‌دی له بلی خوا په آ ز اد پښتونستان اوپه تیره بیا ددیراو ،باجوړ اود مومندو دغا زی آ باد په علاقه کښی دپاکستان له‌خوا عسکری‌سوقیات ،الوتکو ،توپواوتانـکونو بمباری اوعمومی قتل په‌ډیره زیاته بیرحمی اوقساوت اجرا شوی‌دی اوله دی کبله دپښتونستان خلك‌دی‌نتیجی ته ورسیدل چه‌باد استعماری حکومت دتیریو په مقا بل کښی په میړانه اوزړ ور تو ب سر ه په عمومی مبارزه لاس پوری کړی اوباد فناا‌ونیستی لاره و نیسی خو د پښتو نستا ن ملت دمبارزی لار ی‌نه ترجیح ورکوی او غوره بی گڼی اود ژوندانه تر وروستی سلگی پور ی بەد خپلو ملی ناموسو او حقو قو څخه دفاع وکړی .جرگی دمشرانو دو یناوو داو رید لو اوډیر توداستقبال نه وروسته تصویب وکړ چه‌د پښتونستان خاو ره پخپله د پښتو نستا ن په خلکو پوری مربو طه ده اود پاکستان دهغی دتملك دعوی او د نیولو حق نه لر ی جر گی دپښتونستان موضوع دمنځنی ختیز له سترو اواوله در جه مسئلو څخه وبلله اود نړ یه دټولو آزادی خوښوونـکو اوسوله غوښتو نـکو ټولنونه هیله کوی چه‌د پښتونستا ن د خلکو سره دخپلی آزا دی غوښتنی په‌مبارزه کښی داخلاقی اوانسانی همکاری څخه ځان ونه ژ غوری جر گی دپښتو نستان دازادی دلاری دشهیدانو روح‌ته درود و استاوه اود محکوم پښتونستان دزر گونو سیاسی بندیانو سره خپله همدردی اوغم‌شریـکی ښکاره کوی .جرگی دافغانستان دملت او حکومت داخلاقی مرستونه چه دخپل مشر اوخون شریك ورور په‌حیث یی تراوسه پوری له‌مونږ سره کړی دی دزړه له‌کومی اوخـالصانه تشکر کړی اوهیله لری‌چه‌په‌آینده کښی هم‌دخپلو موثرو همدردیو اوهمکاریونه ځان ونه‌ژغوری .

ددلوی په میاشت کښی :

**یوشمیرنور پښتانه‌مشران دپاکستان‌داستعماری حکومت له‌خوا بندیان‌شویدی:**

دپاکستان استعماری‌حکومت ښاغلی‌مشرف‌خان ،ښاغلی اکبرخان ،ښاغلی ملك‌چراغ‌خان ښا غلی ناصر خان ښاغلی ملا بز ر گ خان ،ښاغلی میرنواب خان ،ښا غلی ملو ك خان ښاغلی شهزاده خان ،ښا غلی سلطان خان اوښا غلی سیفورخان دآزادی غوښتنی دفعالیت او د پاکستان داستعماری حکومت له تیریو سره دمقابلی دپاره دخلـکو د لمسو ن په گناه بندیان کړی دی دغه راز دآزاد پښتو نستان اوسیدونـکی ښاغلی غلام خان دنور گل زوی دآزادی غوښتنی وفعالیت په گناه په‌شل کاله سخت بند محکوم کړی دی .

**۴۰۰ تنه پښتانه مستخدمين له کار څخه برطرف شوي دي:**

د پېښور د شهباز دورځپاڼې د خبر له مخې د پاکستان حکومت د پېښور او د يرما سمعيل خان په سيمو کښې دوه سوه تنه پښتانه مستخدمان له کار څخه بر طرف کړي دي .

**يو ټولګې مسلحو پښتنو په يوشمير پاکستاني انجنير انو باندې سختې ړزې وکړې:**

د پېښور د بانګ حرم ورځپاڼه د جنوري د ۱۲ نوټې په ۲۲۶ ګڼه کښې خبر ور کوي چه يو ټولګې مسلحو کسانو په يو شمير هغو انجنير انو او د هغوی د ساتونکو په يوه ډله باندې چه په هغې دولتي اتحاديې پورې اړه لري چه دبند ، بر ښنا او د او بو د ترقي د پا ره ده ( اوواپډا ) نوميږي د ډيره اسمعيل خان د ضلع د تانك د تحصيل مربوطه د ..... درابن» د بند په سيمه کښې سختې ړزې وکړې چه د هغو په اثر د ساتونکو له ډلې نه يو تن زخمي شو ورځپاڼه ليکي چه د حمله کوونکو څخه هم دوه تنه زخميان شوي دي خو د نيول کيد لو نه خلاص شول .

**يو شمير نور پښتانه مشران بند يان شوي دي :**

د پاکستان استعماري حکومت د کوهات د ضلع د ملي عوامي ګو ند رئيس ښاغلي حاجي پردل خان شنواري د خپلو دوو تنو زامنو سره د وطندوستۍ د احساساتو د لرلو په ګناه بندي کړی اومحبس ته ئې لېږلي دي .دمنځنې پښتونستان خبر خر ګندوي چه د پاکستان استعماري حکومت ښاغلي خان بهادر شير خان ښاغلي محمد صديق او ښاغلي ملك سکندر خا ن مسعود د آزادۍ غوښتنې د فعاليت په ګناه بنديان کړي دي .

**د پښتونستان ملت د خپلې آزادۍ د حاصلولو لپاره قطعي تصميم نيولي دي :**

د سپين تنګي د علاقې مربوطه په ورغو نومي کلي کښې د وزير و داتمانزيو نارو ځيلو، دوزيرو احمدزيو، بنو، دوړو او د منځنې محکوم پښتونستان د بيلو بيلو سيمو د علماو، رو حا نيو نو ملکانو، نمايندګانو او د زرګونو نورو خلکو په ګډون يو ستره جرګه شوې وه. جرګه د قرآن کريم د څو آيتونو په تلاوت پرانستل شوه، وروسته تر هغه د دوړو ښاغلي مولوی خليل الرحمن د خپلې جدا يې وينا په ترځ کښې وويل چه د پښتونستان ملت د خپلې آزادۍ د حاصلولو د پاره قطعي تصميم لري او د پښتونستان د جوړولو په لاره کښې به د هرډول قربانۍ له ور کولو نه غاړه نه غړوي ده تاکيد وکړ چه د غه ملي مبارزه د يوه ملي وجيبې او قومي جهاد په حيث د وطن په هرفرد باندې لازمي او واجبي دي. پس له هغه ښاغلي مولانا ميرصاحب خان د خپلې وينا په ترځ کښې وو يل چه د پښتونستان خلك د پاکستان د استعماري حکومت د تيريو او ظلمو نو څخه په تنګ شوي او نور د هيڅ ډول زغم او ـوصلې طاقت نه لري. مونږ د خپلو ويښو ترور و ستې خا ځکې پورې قرباني ور کوو او خپل محکوم ورونه' به د پاکستان د حکومت له منګولې نه آزاد کړو ده په دې، با جوړا وغازي آباد کښې د پاکستان د استعماري حکومت په تيريو او د غه راز په محکوم پښتو نستا ن کښې د ټولو ثقافي آثارو په مصادره او په محکوم پښتونستان کښې د زرګونو علماو ، اديبانو، مشرانو

اومفکرینو په بندیانیدلو باندی ډیره زیاته خواشینی وکړه . ور وسته تر هغه ښاغلی مولوی محمدظاهرشاه دپاکستان داستعماری حکومت دتجاوزونو په مقابل کښی د پښتونستان دملت دیووالی اواتحاد دلزوم په باب کښی جذابه وینا وکړه اودافغانستان دملت اوحکومت داخلاقی مرستو نه یې ممنونیت اوشکریه وکړه تر هغه وروسته دو یرو ښاغلی عزیزالله خان جذا به وینا وکړه اودغه قومی لویه جرگه په دغه نارو پای ته ورسیدله چه ژوندی دې وی پښتونستان او مړ دې وی استعمار.

## دمنځنی پښتونستان په لویه قومی جرگه کښی:

دخیساری په سیمه کښی دحیاتی بابا په زیارت کښی ددوړو اوو زیږ ود مده خیلو، محمود خیلو اودتوریخیلو دعلماؤ ، مخورو، اوروحانیونو نمایندگانو اودنورو زرگونو خلکو په گډون یوه لویه جرگه شوی وه دغه جرگه دجناب مولوی محمد ظاهرشاه له خوا دقرآن کریم دځو آیتونو په تلاوت پرانیستل شوه. ده دخپلی مفصلی وینا په ترځ کښی دملی آزادی دساتنی په لاره کښی دپښتونستان دملت پر له پسی مجاهدات بیان کړل اوویویل چه: دبرتانیې پخوانی استعماری حکومت اودغه راز دپاکستان اوسنی استعماری حکومت پخپلو څوارلس کلنو تیر یو اودسپو کښی ونه کړی شول چه دپښتونستان دملت مقاومت له منځه یوسی. دپاکستان استعماری حکومت دمسلحو تجاوزونو اووحشیانه بمباریو په کولو سربیره اقتصادی محاصری هم رویکار کړی، اوملی مشران، ادیبان اومفکران یې بندیان کړل او مجلی اوثقافی آثاریې ضبط کړل. اوډیر کوښښ یې وکړ چه خپل استعماری پروگرام مخ په وړاندی یوزی مگر دپاکستان داستعماری حکومت دغه اقدامات دملی محاذ دماتیدلو اوړنگیدو باعث نه دی شوی بلکه لایی د آزادی غوښتونکو احساسات وپارول، له دی کبله مونږ یو ځل بیاد پاکستان استعماری حکومت ته اخطار ورکوو چه دپښتونستان ملت به دخپلی ملی آزادی دحاصلولو تر وخته پوری له هیڅ ډول مبارزی اوقربانی نه غاړه ونه غړوی پس له هغه ښاغلی مولوی خلیل الرحمن خان خپل قوم ته وویل چه دپاکستان استعماری حکومت دپښتونستان دملت دد ین اوناموس دښمن دی اودغه ستر خطر په ضد مبارزه دپښتونستان دخلکو دملی فرایضو څخه ده .

## څو تنه نور پښتانه مشران هم بندیان شوی دی :

دښاغلی قمرالرحمن ورور ښاغلی گلرحمن اوددهٔ ځلور تنه نور ملگری په دی وختو کښی په چارسده کښی دآزادی غوښتنی دفعالیت په گناه دپاکستان دحکومت له خوا بند یان او د پیښور مرکزی بندیخانی ته واستول شول. همدغه راز دبرتاکال اوسیدونکی ښاغلی رضاخان اوښاغلی خانزاده چه پخوا هم یو څو موده بندیان و بیاد پاکستان داستعماری حکومت له خوا بندیان شویدی. دغه راز دکوټی دپښتوسانسور شوی مجلی مدیر ښاغلی خداداد خان په سکر کښی دپاکستان داستعماری حکومت له خوا بندی شوی او بندیخانی ته لیږل شویدی، دور ور پښتونگوند دپخوانی رئیس ښاغلی ملک عبدالعلی دوه کوچنی زامن دکوټی په بندیخانه کښی تر ډول ډول اوسختو فشارو لاندی دی. یو بل خبر وایي چه دنا متو عالم ښاغلی حسین بخش کوژ

صحت په دی وختو کښی دمچ په بندیخانه کښی ډیر خراب شوی او دپښتونستان دغه محترم شخصیت ژوندیبخی په خطر کښی دی .

### د آزادمنځنی پښتونستان د دوړ او وزیرو ستره قومی جرګه :

په سپین وام کښی د دوړو اووزیرو دمده خیلو. توری خیلو، محمود خیلو د علماوو، مشایخو ملکانو، نمایندګانو او دنورو زرګونو خلکو یوه ستره قومي جرګه وشوه. جرګه دمرحوم حاجی میرزا علیخان دخوریی ښاغلی ملاجنت ګل خان له خوا د قرآن کریم دځو آیتونو په تلاوت پرانستل شوه. پس له هغه جناب مولوی محمدظاهر شاه، دمحمود خیلو ښاغلی سید نظیرخان او دتوری خیلو ښاغلی مولوی محمدعظیم خان او ښاغلی ملاهیبت خان جذابی وینا وی وکړی چه د حاضرینو له خوا په فوق العاده حرارت استقبال شوی . جرګه درأیو په اتفاق فیصله وکړه چه د آزادمنځنی پښتونستان خلك، دپښتونستان دآزادی په لاره کښی د هیڅ ډول قربانی ورکولو څخه غاړه نه غړوی او دپاکستان د حکومت داسلام دښمنی او استعماری سیاست په کلکه غاندی.

### یو شمیر نور پښتانه د پاکستان د حکومت له خوا نیول شو:

دپاکستان استعماری حکومت دمرکزی محکوم پښتونستان یو ملی او مشهور شخصیت ښاغلی کرامتشاه فولاد اودمردان اوسیدونکی ښاغلی عبدالعزیز اودمرغوز او سیدونکی ښاغلی جرنیل خلیل الرحمن اودمومندو ښاغلی حاجی عبدالله دآزادی غوښتو نکو په ګناه بندی کړی دی .

دچارسدی په تحصیل کښی دیوه پاکستانی افسر کورته لاس بم اچول شوی او هغه وژل شوی دی،

په مرکزی محکوم پښتونستان کښی دملی مجاهدینو له خوا دچارسدی دتحصیل دزیم کلا په کلی کښی دپاکستان د حکومت دیوه افسر کورته لاسی بم اچول شویدی چه دهغه په اثر دغه افسر مړ شوی او کورته یی تاوان رسیدلی دی .

### دورکزو جرګی دپاکستان دحکومت استعماری تجاوز و نه وغندل :

په دو ګړ کښی دورکزو ستره جرګه شوی وه او په هغی کښی دپښتونستان په خاوره او ملت باندی دپاکستان د حکومت استعماری تیری په کلکه سره غندل شوی دی او د ورکزو خلکو دپاکستان استعماری حکومت ته اخطار ورکړی دی چه که دپښتونستان په خاوره کښی دخپلو استعماری پروګرامو له تعقیب څخه وانه وړی د نړی د دغه ګوټ امنیت به خراب شی او د هغه دعوا قبو مسئول به دپاکستان استعماری حکومت وی .

### دپاکستانی ملازمینو په کمپونو باندی لاسی بمونه اچول شویدی:

د پیښور ښارته نژدی په بڼه بیره کښی د پاکستانی ملازمینو په کمپ باندی لاسی بمونه اچول شوی او دتاوان موجب شوی دی.

### دآزادپښتونستان دصافو دقوم څو تنه په شبقدر کښی بندیان شوی دی

دپاکستان استعماری حکومت ښاغلی بهاول خان، ښاغلی حضرت جان، ښاغلی اکرم خان ښاغلی محمدعظیم خان او آزادپښتونستان دصافو له قوم څخه څلور تنه نور پدی وختو کښی

په شبقدر کښی بندیان کړیدی . دغه کسان دخپلو ځینو شخصی چارو داجراکولو دپاره محکوم پښتونستان ته تللی و .

دپېښور دالوتکو میدان ته نژدی په یوه عسکری تهانه کښی لاسی بم چوول شویدی.

دپېښور دالوتکو میدان ته نژدی په یوه عسکری تهانه کښی لاسی بم چوول شوی دی دغه راز دملی مجاهدینو له خوا دپېښور عسکری چوڼی ته نژدی په دوو لمبر تهانه باندی یو بل بم اچول شو یدی .

## یوشمیر وسله لرونکو خلکو په یوه دولتی جیپ موټر باندی ډزی کړی:

دشهباز ورځپانه چه په پېښور کښی چاپیږی دملوی داووه ویشتمی نیټی په خپله ګڼه کښی لیکلی دی چه په دی ورځو کښی یوشمیر وسله لرونکو کسانو په یوه دولتی جیپ موټر چه داوبو لګولو مامورین او یوتن خارجی متخصص پکښی سواره وو ډزی کړیدی چه یوتن ستر مامورئی ټپی کړیدی . دغه ورځپانه داهم لیکلی چه دپاکستان حکومت دشیر اغنی دملاقی لس تنه ددغه کار په تومت بندیان کړی دی .

یوشمیر ملی مجاهدینو دپاره چنارد حکومت ودانی ته لاسی بم ورغورځولی دی .

## دحوت په میاشت کښی :

## په بنو او میرامشاه کښی دپاکستان دنظامی رژیم په ضد سختی مظاهری وشوی:

په بنو او میرامشاه کښی دپاکستان راستعماری اونظامی رژیم په ضد سختی مظاهری وشوی اودپاکستان حکومتی مقامات ئی پریشان کړی دی . دپاکستان داستعماری حکو مت اجیرانو په محکوم پښتونستان کښی دپښتو ژبی اوثقافت په ضد یوسخت تحریک شروع کړی اودحکومت له خوا یی په جدی صورت ملاتړ کیږی . دمحکوم پښتو نستان سیاسی او ثقافتی ټولنی دپاکستان داستعماری حکومت ددښمنی دوضع اوروییی نه ډیری په قارشوی اوپاریدلی دی دمرکزی محکوم پښتونستان پېښورنه رارسیدلی خبروا یی چه پدی ورځو کښی دپیر پا یی دکلی اوسیدونکی ښاغلی شیر رحمان دآزادی غوښتنی دفعالیت په اثر دپاکستان داستعماری حکومت له خوا بندی شوی دی .

دپښتنو مجاهدینو له خوا دهریجنه په پا کستانی تا ڼی او ډیری په بازار کښی لاسی بمونه چو ل شو یدی .

دملی مجاهدینو له خوا ډیری په بازار کښی یو لاسی بم وچول شو. دهریچند په تهانه باندی دوه نوربمونه هم اچول شوی دی . دپاکستانی حا کما نو ددی پیښی په اثر د هغه ځا ی دښا خوا کلیو ځینی خلکو ته راستنطاق لاندی نیولی او ۴۸ ساعته یی توقیف وساتل. دپاکستان استعماری حکومت دهغه ځای خلك ترفشار اوتهدید لاندی نیولی دی چه ددغو پیښو مسئول کسان معرفی او وسپاری . دپاکستان استعمار ی حکومت دمومندو دحلیمزو دهمرشالی ورور اودغه راز ښاغلی خانګل حلیمزی دآزادی غوښتنی په فعالیتو کښی دلاس لرلو په الزام بند یان کړی اومجلس ته یې لیږ لی دی .

### دوړکزو ملي مجاهدينو دخپرې د کلي په تاڼه بريد خښ کړ :

دوړکزويو شمېر ملي مجاهدينو د کورمي دايجنسي مربوطو دخپرې دکلي په تاڼه حمله وکړه چه دهغې په اثر ددواړو خواؤ ترمنځ نښته و هوه او نتيجه کښې يې دملي مجاهدينو يوتن ښاغلي انورخان خديداد خيل ټپي شواود ه ښمن قواؤ ته هم زيان رسېدلی دی .

### ديوتن پښتونستاني مجاهدوفات:

ښاغلي عجب گل زخه‌خيل اپريدی چه‌دخيبريو مشورپښتون اودوطن دآزادۍ پخوا نی مجاهدؤ ه دناروغۍ په اثر ددلوی په شلمه نېټه مړشوی‌دی . دپښتونستان دآزادۍ په لها ره کښې دقدرووړ مجاهدي کړی د ی .

### په‌مرکزی محکوم‌پښتونستان‌کښې دپاکستان‌دحکومت په‌ضد مظا هرې‌وشوې:

دپاکستان دنظامی‌حکومت داسلام دښمنۍ داقداما تو اوتيرۍ يوپه ضدډبده بهرۍبهادرکلي اوديچگی دکلو دخلکوله خوا بياسختی مظا هرې هوې او دپاکستان حکومت ددې‌پېښې په‌اثر يوشمېر کسان بنديان کړيدي . دفروري په۲۳ نېټه دپېښور دښار داشنغرې دروازې‌دجامع جومات خطيب دسوړېزی ودکلي اوسيدونکي‌مولانا گل کمال‌چه دمظا هرې کوونکودټولگی مشر ؤ دپا کستان داستعماری حکومت له خوا بندی شوی او زندان ته وليږل شو دغه راز

د پا کستا ن استعما ر ی حکومت او ښا غلي محمد صد يق او ښا غلي حا تم خا ن چه دخدايي خدمتګاردګوند ستر کسان د ي بند يان کړيدی دبده بهر ی په‌سيمه کښې په زياته مسا فه دتيلفو ن لين له‌منځه وړ ل شو يدی په مرکزی‌محکوم پښتونستان‌کښې‌دنويو بحرانو په‌اثر دخلکو په‌ګرځيدلو اوتګه‌راتګه باندی‌دنظامی حکومت له‌خوا لګوله‌شوی‌بنديزونه اوپابندی لاپسې سختې شوی د ی .

### دپاکستان‌حکومت‌څو تنه پښتانه‌بنديان کړيدی:

دپاکستان داستعماری حکومت‌مقاما تودهغوپېښوپه‌اثرچه‌په‌مکررډول دپاکستان دحکومت دتاسيساتو او استحکاماتو په ضد دخيبر په دره او په شاو خوا کښې کيږی ښا غلي حاجی عباس خان ، ښاغلي جلندر خا ن ، ښاغلي ميرا حمد شاه خان، ښاغلي سيداحمدخان ښاغلي آدم خيل، ښاغلي‌روزشاه خان‌اپريدی کوکې‌خيل اواوه تنه خاصه‌داران‌اويوتن جمعدار بنديان کړی‌دی .

په‌منځنی پښتونستان کښې د وزيرو د محمود خيلو يو ټولګي ملي مجاهدينو د هيخ آدم عسکری کمپ ته نژدی دشهزاده دقلا تر څنګه يو پوخ پل دچاوديدونکو موادو په وا سطه وران کړ يد ی .

### دپاکستان حکو مت هغه دپوليسو پښتونستاني‌افراد برطرفوی‌چه‌تراشتباه لاندی‌وی ؛

دپاکستان استعماری حکومت يو هيأت ټاکلی دی‌چه دپوليسو هغه پښتونستاني افرادچه دپاکستان حکومت شك او بدګمانی ور با ندی لری له کار څخه برطر ف کړی. دغه موضوع علت چه پاکستان مطبوعاتو‌هم تصديق کړی دی‌دپاکستان له استعماری‌حکومت

سره دپښتو نستان دخلکو دټولو طبقو ورځ په ورځ زیاتیدونکي مخا لفت دی پخوا له دی پر وسبز کال دمارشا لا په ضد او دتخریبي فعالیتو دتومت په اثر دپیښور په ښاراودمرکزی محکوم پښتو نستان په نورو سیمو کښی دپولیسو دځینومنصبدارانو اوافرادو دنیولو پر له پسی پیښی وشوی او دغه نوی اقدام ددی لپاره نیول شو ی دی چه د پښتونستا نی پولیسو په منصبدارانو او افرادو با ندی دپاکستان مقاماتو اعتماداو باور بیخی سلب شوی دی بلخبر چه هغه هم دپا کستان مطبوعاتو له خوا تایید شوی دی دا ـ وایی چه دپاکستان داستعماری حکومت په ضد د مظاهرو لمن د سند ولا یت ته هم خپره شویده لکه چه پهدی ورځو کښی دملتان په ایمر سن کا لج کښی پر له پسی مظاهری او اوږد اعتصاب وشو او وروسته له هغه دایمر سن کالج دټولو زده کوونکو په اعتصاب لاس پوری کړ چه تراوسه پوری دوام لری.

## دیوه پاکستانی ایجنټ په کور کښی سخته چاودنه شوی:

پهدی وختو کښی دپیښور دتحصیل مربوطه دخویشکی پایان، په کلی کښی دپاکستان د حکومت دیوه ایجنټ په کور کښی یوه سخته چاودنه شوی ده چه دهغه په اثر دمالی ستر تاوان څخه علاوه څلور تنه سخت ټپیان شول.

## دمرکزی پښتونستان یوشمیر جید وعلماؤ دپاکستان نوی اساسی قانون وغاند:

پهٔ مرحد دجمعیت العلما دریٔیس جناب مولینا سید گلبادشاه ، جناب مولا نا عبدا لقیوم پوپلزی اودجناب مولانا سید محمدامیرشاه په شمول دمرکزی محکوم پښتو نستان یوشمیر جیدو علما ؤ دپاکستان نوی اساسی قانون وغانده په تیره بیا په دغه باب کښی یی دیره خواشینی او نارضایی ښکاره کړه چه په دغه نوی قانون کښی پهدی باره کښی هیڅ ذکر شوی نه دی چه اسلام دپاکستان رسمی دین دی دمردان وضلع مربوط ښاغلی مولوی صلاح الدین او ښاغلی مولوی حبیب الله دپیښور دضلع مربوط ښاغلی مولوی غیرت گل اودمحکوم پښتو نستان یوزیات شمیر علما دپاکستان له نوی اساسی قانون سره دسخت مخالفت په اثر بندیا ن شوی دی .

## دوزیرو داحمدزیو دقبیلی علماو وکیلانو او نورو ډیرو خلکو دیوی جرگی فیصله:

په وانه کښی دوزیرو د احمدزیو دقبیلی دعلماو وکیلانو اودنورو ډیرو خلکو په گډون یوه ستره جرگه شوی وه چه ښاغلی مولوی گل ولی خان دخپلی جذا بی و ینا په تر ځ کښی وویل چه: دپښتو نستان ملت دانگلیس داستعماری تیریو په مقابل کښی اوږدی اودوام لرونکی مجاهدی وکړی او ترهغه وخته پوری چه دپاکستان استعماری حکومت دپښتونستا ن د ملت په حقه حقوقو اعتراف ونکړی دهغه په مقابل کښی به هم خپلو مجا هدوته د و ام وکړ ی.

وروسته ترهغه ښاغلی بهرام خان مفصله وینا وکړه اووی ویل چه دپاکستان استعماری اوتیر ی کوونکی حکومت زمونږ دآزادی خاوری دنیولو دپاره ډیر کو ښښو نه وکړل خو دپښتو نستان خلک دخپلی آزادی خاوری اوقوم دسا تنی دپاره دهر ډول قربانی ورکولو ته تیار دی او دپاکستان استعماری حکومت به هیڅکله موقع و نه مومی چه خپل استعما ر ی پر و گر ا م دپښتونستان دخلوری اوملت په باب کښی تطبیق کړی دهغه نه وروسته ددو ښاغلی مو لو ی

عبدالرحمن پدې باره کښې دپښتونستان دخلکو احساسات او جذبات وستايل چه دخپلې آزادۍ دپا تنې اودخپلو محکومو وروڼو دخاورې دېوې‌سترې برخې دخلاصولو دپاره په ټينګه متفق دي او هرډول قربانۍ ورکولو ته تياردي اوهغه داهم وويل ترهغه وخته پورې چه دپښتونستان دملت نه يو فرد ژوندی وي دپښتونستان دآزادۍ غوښتنې مشال به روښان وساتي پس له هغه ښاغلي رحيم شاه خان ښاغلي شيردل خان ګنګې خيل ، ښاغلي شيرجان ښاغلي اسمعيل خان خوجه خيل ښاغلي شاه عالم خان اودهګي ښاغلي نادر خان هريو په‌وار سره وينا وکړې دغه سترې جرګه پدغه نارو پاى ته ورسيده‌ژوندی‌دې‌وي پښتونستان مړدې وي‌استعمار .

## دپېښور دضلع دنوښاردليسې زده کوونکو په سختو مظاهرو لاس پورې کړی‌دی:

دمرکزي محکوم پښتونستان دپېښور دضلع دنوښار دليسې متعلمينو په عمومي او سخته مظاهره لاس پورې کړې‌دې اودپاکستان‌داستعماري حکومت‌دمظالمو اوتيرېو په‌ضد يې سخته کرکه ښکاره کړه لکه‌معلومه شوې‌چه‌دې تراوسه‌هم‌ددغې‌ليسې حالات کړکيچن‌دي پوشمير مسلحو حمله کوونکو په‌ديره‌اسمعيل‌خان کښې په‌يوه‌د ولتي‌ودانۍ باندې‌حمله کړې‌ده اوپه‌هغه تاوان سربيره چه‌دغې‌ودانۍ ته يې رسولي‌دی ددغې ودانۍ يوتن ساتونکې‌يې چه حبيب الله نوميږي‌هم وژلى دي دپاکستان پوليسو او انتظامي قواؤ حمله‌کوونکي نه پيژندلي اونه يې نيولي‌دي.

## مولينامحمداشرف دپاکستان‌داسلام‌دښمنۍ له سياست‌سره دمخالفت په‌ګناه‌بندي شويدی :

دمرکزي محکوم پښتونستان دمردان‌دضلع دصوابي يوعالم‌مولينا محمد اشرف دپاکستان داستعماري حکومت له خوا په‌دې‌ګناه بند محکوم شوی‌دی ددغه اقدام علت دپاکستان دحکومت‌داستعماري او اسلام دښمنۍ له سياست سره د مولينا محمد اشرف سخت مخالفت ښودل شوی‌دی

## د۱۳۴۱ کال دحمل په‌مياشت کښې:

## لاسي بمونه‌اچول:

دآزاد شمالي پښتونستان دباجوړ يو ټولګي‌ملي مجاهدينو دحوت دمياشتې په۲٦ تاريخ دښارپه رياست کې دبرېښنا په ډيزلي ماشين باندې چه دپاکستاني عسکرې چوڼۍ او د پوځي افسرانو استوګنځي ته‌يې برېښنا ورکوله لاسي بمونه اچولي‌اودهغو په‌اثر دبرېښنا يو انجنير مړ اودپاکستان دوه تنه‌عسکر سخت ټپيان شول په‌دغه وخت‌کې‌دپاکستان‌توپخانې اودرندو وسلو په مسلسل ډول سره څلور ساعته سختې ډزې وکړې اودملي مجاهدينو نه هم يوتن زخمي شو.

## دبيګ‌ياره تانې ته‌لاسي بمونه‌ورواچول‌شول:

دحوت په۲٦ نيټه دآزاد شمالي پښتونستان دتيرا يوې‌ډلې غيرتي او ننګيالو مجاهدينو دبيګ ياره تانې ته څولاسي بمونه ور وا چول اويوې بلې‌ډلې په هغه‌تاريخ دکو...

دناوی دسدی دعلاقه داری په ودانی سختی وزیږکړی چه یوره تاوان ئی ور وارړ ه و ه .

## په مرکزی محکوم پښتونستان کی دپاکستانی ایجنټانو تهدیدونه:

دپاکستان استعماری حکومت دخپلو دایجنټانو په وسیله ځینی تهددونه او گوابنونه خپاره کړی چه کهچیرته څوك دپاکستان دنوی اساسی قانون په خلاف اودهغه په ضد انتقاد او غندنه وکړی نوهلاوه دیوکال سخت بندخخه به په پنځو سوو(۵۰۰)کلدارو ونقدی جریمه محکوم شی.

دهغو تهدیدونو سره سره د پښتونستان خلك د پاکستان نوی اساسی قانون دخپل سرنوشت دټاکلو دحق اودخپلو ثابتو حقوقو په مقابل کی یونوی اختناق بللی او له هغه څخه کرکه او نفرت لری او په جوماتونو او ټولنو کی دهغه په ضد سخت مخا لفتو نه ښکاره کوی .

د حوت په ۲٦ تاریخ د پیښور په کابلی دروازه کی د یو بم چاودلو په اثر زیات زیان رسیدلی دی دیرو ځمکنیو رپوټ دی چه دملی مجاهدینو یوی ډلی دپاره چنار دپولټیکل ایجنټ په کور اودهاکی کلا په عسکری تاڼه سختی حملی اوږزی وکړی.

په یوه لویه تاریخی جرگه کی دپاکستان داستعماری حکومت تیری او تجاوز وغندل شو.

دحوت په ۲۱ نیټه په بنونسته کی داتمانخیلو دعلماوو، ملکانو، نمایندگانو او نورو خلکو په گډون یوه لویه او ستره جرگه وشوه او په هغی کی دپاکستان د حکومت داستعماری سیاست څخه په تیره بیا دبا جوړ په خاوره باندی دهغه استعماری حکومت دتیریو اوداتمانخیلو دیو شمیر خلکو دبندی کولو په نسبت سخته کرکه شوه او یوځل بیائی دپاکستان د حکومت داستعماری تیریو په ضد دمبارزی په باب کی دهرډول قربانیو په حقله خپل تعهدات نوی کړل دغه شان دماموندو مشرانو، مخورو وکیلانو او نورو وگړو په گډون په بیان چوړ کی لویه جرگه وشوه او په هغی کی قومی مشرانو جذابی وینا وی وکړی جرگی دپاکستان حکومت ته اخطار ورکړ ترڅو چه دپښتونستان دملت مسلم حق محترم ونه گڼی اودپښتونستان په ملت باندی له خپلو تیریو څخه وانه وړی دماموندو خلك به دپښتونستان دملت دنورو خلکو په شان خپلو مبارزو ته دوام ورکړی او په دغه لیاره کښی به له هرډول قربانی څخه ډډه ونکړی.

## دکوهات دضلعی دبنو نکړ په تاڼه دملی مجاهدینو له خوا دلاسی بمونو اچول:

یوټولگی ملی مجاهدینو دکوهات دضلعی دبنونکړ په تاڼه باندی لاسی بمونه واچول اوتاڼه وان کی وروړساوه دهغه شان بل ټولگی ننگیالو پښتنو دچکرکوټ داورگاډی په ټیشن لاسی بمونه استعمال کړیدی اودهغه په اثر دغه ټیشن ته زیات زیان رسولی دی دغه راز یوی بلی ډلی ملی مجاهدینو دجمرود په علاقه دار او دهغه په کوټنو ساتونکو ږزی وکړی.

## ملي مجاهدينو دپاکستان يوه دولتي ودانۍ په باروتو خرابه اوپه يوشمير لاريويي حمله وکړه :

دمنځني پښتونستان دوزيرو او مسعودو کامونو دملي مجاهدينو ډلودسپين وام په عسکري چوڼۍ دګومل په کمپ اودتيپي په فوځي تاڼه سختې دزي وکړي همدغه راز دبدي خان په سيمه کي يو ټولګي مجاهدينو دپاکستان دحکومت په يوشمير لاريوسخت باټونه وچلول اوزيات تا وان ئې وروراساوه دغه شان دملي مجاهدينو يوې بلې ډلي د ښاغلي خير محمد خان په مشرۍ د ساړه راغه په سيمه کښې يوه د ولتي ودانۍ په باروتو وړوله . دتيرا داپريدو يوې ډلې مجاهدينو هم د سورډنډ اودلواړګي داورګاډي په ټيسن باندې سختې ډزې وکړي .

د محکوم مرکزي پښتونستان د تجارت د اطاقو رئيس دپاکستان نوي اساسي قانون وغانده ، دمرکزي محکوم پښتونستان د تجارت د اطاقو رئيس ښاغلي ګل محمد خان دپاکستان په نوي اساسي قانون باندې دتبصرې په ترڅ کښې غند نه وکړه او وي ويل چه زمونږ دخلکو دمحکوم پښتونستان د ژبې اوثقافت حمايه اوترقي ورکول يوه حياتي مسئله ده اوموږ به تل پدغه لاره کښې خپلو کوښښونو اومجاهدو ته دوام ورکړو .

يوې ډلې ملي مجاهدينود سدي په بازار کښې په چاودېدونکومواد ويوبوخ پل اويوه اندازه سړك ورا ن کړيدی ،اودغه رنګه د ملي مجاهدينونورو ډلو د حوت په ۲۰ نيټه د سدي په عسکري تاڼه سخت باټونه وچلول .اودتيرا يوشمير ملي مجاهدينو د حمل په ۳ دلواړګي په عسکري تاڼه بي ساري حملې وکړي .

آزاد شمالي پښتونستان په تيراکي د سه پاي قبيلي په نرګوش کي يوه لويه اومهمه جرګه وکړه چه په هغه کښې دهغه قبيلي مشرانو ، مخوراواويوشميرسترو کسانو په ګډون مهمه جرګه کړې وه او وروسته دوينانه چه دپاکستان دنظامي حکومت د استعماري سياست په ضد جذابي اوسختي ويناوي وشوي جرګي په پوره اکثريت دا اعلام کړه چه دپښتونستان موضوع دپښتونستان دملت لپاره يوه حياتي مسئله دهاومونږدپښتونستان خلك به دخپل ژوند تروروستۍ سلګۍ پورې دخپل وطن دآزادۍ اوخپلواکۍ په لياره کښې مبارزه اومجاهده وکړو .

## په لواړګي کي دپاکستان د استعماري حکومت په ضد سختي مظاهري

دحمل په ۸ نيټه دپاکستان داستعماري حکومت په ضدپه لواړګي کي سترې اولوې مظاهرې وشوي ، دخيبر، لواړګي ، جمرود ، شينوارو اواپريدو قبيلو په ګډه سره پدغو مظاهرو کي ګډون وکړ اودپاکستان داستعماري حکومت خلاف ئې نا رې وهلي . د غو مظاهره کوونکو په پای کښې جرګه وکړه اودپاکستان داستعماري حکومت دتيريواولاس وهلو په مقابل کي ئې د مقابلي اوقرباني د ورکړې دلزوم په باره کي دجوش نه ډکي ويناګاني وکړي اوپه کلکه ئې دپاکستان داستعماري حکومت څخه وغوښتل چه ددوی په چاروا وسيمو کي له لاس وهلواومداخلي نه لاس واخلي.خبرداهم وائي چه تر اوسه پورې دخيبر په سړك باندې د هرډول موټرو دوتګ اوراتګ بيخي بند دی اوبازارونه اوښوونځي تړلي دي .

دپښتو نستان یوسترشخصیت دپاکستان نوی اساسی قانون وغانده :

مولانا محمد اکبرخان چه د پښتونستان یوسترشخصیت دی او انګلیسی استعمار په ضد د مشهورومجا هد پنوڅخه دی د پاکستان نوی اساسی قانون په کلکه وغانده اووی ویل چه دپاکستان دنوی اساسی قانون څخه د پر نا امیده دی او هغه هیلی ئی په نا امید ی بدلی شویدی کومی چه دنوی اساسی قانون په باب کی ئی په زړه کی روزلی . مولانا محمد اکبرخان وویل : هغه شی چه د پاکستان عسکری حکومت نوی اساسی قانون بولی په حقیقت کی هماغه دنظامی حکومت ضوابط اوقواعد دی چه په ماده لرونکی او مرتب شکل سره یوځای کړل شویدی اوهدف ئی دپاکستان د اوسنی نظامی حکومت د زمامدارانو داقتدار ټینګول دی او بس :

مولانا وویل چه دغه قانون داوسنی نظامی حکومت واکمنوته د مطلق العنانی اجازه ورکړیده اود هغی په اثر به دحکومت هیڅ کوم غړی دکومی قانون جوړونکی مؤسسی په نزد مسئولیت ونلری. مولانا محمد اکبروویل چه دپاکستان ملت هوښیا ردی اونه یوازی داچه پدا سی تش په نامه قوا نینوباندی نه غولیږی بلکه انتظارکیږی چه ژر به هغه دعمل په ډول ردکړی .

دمرکزی محکوم پښتونستان لویواونا متوعلما ؤ په یوه فتواکی دپاکستان د حکومت داسلام د ښمنی اجراآت وغندل .

دمحکوم مرکزی پښتونستان یوسل او ۲۷ تنوجیدو اوسترو علما ؤ په یوه چاپی فتوا لیك کی دپاکستان دحکومت داسلام دښمنی اجراآت سخت وغاندل اووی ویل چه دپاکستان نظامی حکومت د زمامدارانو یولی اجراآت چه غوا ړی هغوته قانونی بڼه ورکړی اوخلك دهغوپه پیرو ی مکلف کاندی له قرآنی ارشاداتوڅخه بیخی مخالف اونقیض دی . علماؤ اعلام کړیدی چه دغه موضوع دومره اهمیت لری چه په کاردی ټول خلك دنویومقرراتوپه مقابل کی قیام وکړ ی اودپاکستان دتصرف اوتجاوزلاس داسلام له مبین دین څخه لنډکړی .

په مرکزی محکوم پښتونستان کی حالات وران دی:

د حمل په ٦ نیټه د شیرپا ؤ دکلی دبرېښنا په برج کی سخته چاودنه و شو ه او د برېښنا دستګاه ته زیات تاوان ور ورسید اود محکوم مرکزی پښتونستان په ټو لو سیمو مخصوصاً دپیښور په علاقه کښی هم داسی نوری زیاتی پیښی شویدی اود هغه په اثر په هغه ځای کښی امنیت بیخی وران شوی . ددی پیښوپه اثردپاکستان استعما ری حکومت یوزیات شمیرخلك نیولی اوجیل ته ئی اچولی دی .

دپاکستان د حکومت په ضد دخلکو کرکه اونفرت لاپسی ورځ په ورځ زیاتیږ ی .

ملی مجا هد ینو دغلزایو اواړولی دعسکری نا ټو ترمنځ دنیلفون مز ی له منځه یوړل .

په آزاد شمالی پښتونستان د ورکزو یوې ډلی ملی مجا هد ینو دکورمی په سیمه کښی د غلزایوپه تا ڼه سختی دړ ی وکړی . دغه شان دغلزایواو اړولی د عسکری تا ټو تر منځ

سیمه کې په زیاته مسافه د تیلفو ن مز ی له منځه وړیدی ، د پړو څمکنو مجا هد ینو هم دبا دا مې په پوزی تا ښه سخت باټونه وچلول اوزیات تا وان ئې هغه ته ور ورسا وه .
دپا کستان استعما ری حکومت یوزیات شمیر پښتونستانی مشران او علماً نیو لي او بند یان کړی .
دپښتو نستان یوزیات شمیرمشران اوعلماء دپاکستان د استعما ر ی حکو مت د اسلا م د ښمنی له سیا ست سره دد وی د سخت مخا لفت په گناه نیول شوی اوبند یان شوی . دحمل په ۱۵ نیټه په کوهاټ کې مو لوی محمد شر یف خا ن ، مولوی محمد عمر خان او مو لـو ی فا درخان، اومولوی محمد نبی خان نیول شوی اوبند یخانو ته لیږل شویدی .
دغه شان ښاغلی علیم گل خان، ښاغلی غلام نبی خان ، ښاغلی ارشدخان اوښاغلی طوطی خا ن دپاکستان دتش په نامه اسا سی قانون سره د سخت مخالفت او دکو ها ټ د ضلع مر بو ط دهنگو په تحصیل کې له دووتنوپا کستانی ایجنټا نو سره د نښتی په اثر بندیان شو یدی . ښا غـلـی محمد زمان ، ملك حبیب شاه خان ، ملك سید نظیر خان ، ښاغلی عمردین خا ن اوښاغلی سیفورخان هم دپښتو نستان دملت په مقابل کې دپاکستان دحکومت له تجاوزکارانه سیا ست سره دمبارزی په وجه په تړل کې نیول شوی اوبندیان شویدی .

### دآزادی غوښتلو په گناه بندي کیدل :

په جنوبی محکوم پښتو نستان چمن کې . دپاکستان استعما ری حکو مت ښا غلی حا جی نظرمحمدخان اڅکز ی چه دچمن یوتن مخوردی د آزادی غوښتلو په گناه بند ی ا و جهیل ته استول شویدی .

### دپاکستان داستعماری حکومت چاپلوسو اوغوړمالو جریدو ته په محکوم پښتونستان کې په نفرت او کر که کتل کیږی:

په مرکزی محکوم پښتو نستان پیښور کې دپاکستان داستعماری حکومت دمتعصبو اوچاپلوسو ورځپا ڼو جریدو دمنفی استعماری اوپښتون دښمنی تبلیغاتو په مقابل کې د پښتو نستان دخلکو کر که اوتنفر ډیر زیات شوی اوپه ډغو وختو کې دهغه ځای خلکو په کښه دد غو جر یدو په ضد دپښتو نستان دخلکو په نزد دپاکستان دحکومت داستعماری مقصدو دپرمخ بیولو آله پیژند لی شوی ده ، احتجاج کړی دی دغه رازد مردان ، او پیښور دخلقوزیاترو اوسیدونکو دقومی جرگو په ترڅ کې په دغو سیمو کی دشهباز اوانجام دورځپاڼو توزیع او پیرودل بند کړ ی اوپه ټینگه ئې منع کړی دی. پخواهم دمحکوم پښتو نستان دخلکوله خوا ددغو جریدو په ضد څو واری سختی مظاهری شوی وی . لکه چه دهغوا داری ئې په تیښتو وویشتلی اوزیات زیانونه ئې ورواړول.

### دسالارزیو ننگیالو مجاهدینو څوتنه پاکستانی تیری کونکی عسکر و وژل:

دآزاد شمالی پښتو نستان باجوړ کې دسالارزیو یوی ډلی ملی مجاهدینو دمو ندی په پوځی کمپ باندی حمله وکړه اویه هغه جگړه کې چه دملی غازیانو ار پا کستانی عسکرو چه د کمپ ساتنه ئې کوله په منځ کې وشوه دری تنه پاکستانی عسکر ووژل شول اوپنځه تنه نورئی سخت زخمیان شول دملی مجاهد ینو بل ټولگی په دغه سیمه کې په یوه پا کستانی جیپ باندی حمله وکړه اوهغه ئې

وران کړ دجيپ دسپرليونه دری کسه مړه اودری نورئی ټپیان شول. همدغه شان په تیرا کی ملی مجاهدنیو د حمل په ۱۲ نیټه دبری په تانه سختی وزی وکړی. په دغه تانه کی دپاکستان استعماری عسکر پراته ؤ ،

د حمل په ۱۹ تاریخ داپربدویو لوی ولی په یوه پاکستانی اورگادی چه دلواړ گی څخه پیښور ته روان ؤ د یکیاری په سیمه کی حمله وکړه او وروسته له هغه چه اورگاډی ئی ودرا وه نو کوم شی چه ددولت په کی ؤ هغه ئی له منځه یوړ او اوښتی کړ په هغه نښته کی چه داورگادی دساتو نکو او ملی مجا هدینو په منځ کی وشوه دپښتو مجاهدینو سخت مقاومت له کبله وتښتیدل اوداور گاړی دتکتو یوتن پلټونکی هم سخت ټپی شو .

## دپاکستان استعماری حکومت دپښتونستان یوشمیر ملی مجاهدین دآزادی غوښتلو په گناه بندیان کړی دی

د حمل دمیاشتی په ۱٤ نیټه یوشمیر ملی مجاهدینو په گلستان کی دپاکستان په یوه دولتی ودانی لاسی بمونه واچول او سخت زیان ئی وررساوه . همدغه شان دژوب او سیدونکی ښاغلی ملک لالهند ښاغلی ملک رضاخان ، ښاغلی ملک ناری خان ، ښاغلی حاجی سیدگل ، ښاغلی ملک حاجی ولی محمد خان، ښاغلی گلاخان کاکړ ، دهندوباغ اوسیدونکی ښاغلی ملک اخترمحمدخان ، ښاغلی ملک غلام حیدر ښاغلی ملک تاجو، ښاغلی ملک عبدالمنان ښاغلی حاجی عبدالله خان ښاغلی ملک طوطی ، ښاغلی ملک مروند ښاغلی کچ ښاغلی ملک شیر و ښاغلی ملک کمال کاکړ دآزادی غوښتلو په گناه ، دپاکستان داستعماری حکومت له خوا بندیان شویدی.

## په کلکته کښی د پښتون جرگی پخپله یوه غونډه کی دپاکستان دنظامی حکومت ظلمو نه وغندل

د حمل دمیاشتی په ۲۳ نیټه په کلکته کی دپښتون جرگی دلویدیز بنگال دخانگی نرس پرستی لاندی غونډه وکړه په دغه غونډه کی دپاکستان دنظامی او عسکری حکومت هغه ظلمونه او استبدادونه وغندل چه دپښتونستان په خلکو ، لوی وړوکی کیږی. دډیلی راډیو وویل چه دغه رنگه په دغه غونډه کی دپاکستان له حکومت نه په ټینگه وغوښتل شول چه دپښتو نستان ستر مشر اوړ هنما خان عبدالغفار خان او دخدائی خدمتگار ۲۲ زره نورکسان چه اوس دپاکستانی جابر حکومت په جیلونو او بندیخانو کی شپی ورځی سباکوی خوشی کړی .

## دپاکستان استعماری حکومت یوشمیر قومی مشران دهغه حکومت سره دبرخلافی په گناه بندیان کړل:

دپاکستان استعماری حکومت دمیدان اوسیدونکی ښاغلی ملک محمد امین خان ، ښاغلی ملک عمراخان ، ښاغلی ملک عبدالمجیدخان ، ښاغلی ملک عبدالحق خان ، اودشاه بابری قاضی صاحب چه قومی مشران دی دآزادی غوښتنی او دپاکستان داستعماری حکومت سره دبرخلافی په گناه بند یان کړیدی. دباجوړ خبردی چه د حمل په ۱۷ نیټه دکڅ په کلی کی دماموندو مخورو علماو ملکانو او نورو خلکو ستره جرگه کړی وه او په هغی کی دپاکستان داستعماری حکومت

د تېرېو له پروګرامو سره د مقابلې په باب او د غه شان د پاکستان د ایجنټانو د فتنې اچولو د مخنیوی له پاره پوره ترتیبات او تصمیمونه ونیول شول .

## د پاکستان په نظامي تاسیساتو ئي بمونه واچول:

د حمل په ۱۹ نیټه د پېښور د ښار په ډېګرې دروازې کې یو بم وچول شو او د حمل په ۲۲ تاریخ د پېښور په صدر کې د خیبر د پولټیکل اجنټ د لومړی امبرساستو نکو د ټولګی په مرکز باندې هم یو بل بم چاودېدلی دی .

## د پاکستان استعماری حکومت ځوتنه مشران د آزادۍ غوښتلو د فعالیت په اثر بندیان کړل

د پاکستان استعماری حکومت د کوهاټ په علاقه کې د کرك او سیدو نکی ماستر سید شاه او د ابرا هیم زیو او سیدو نکی ښاغلی حمید خان او ښاغلی زنګی خان د اپریل په دوهمه نیټه د آزادۍ غوښتلو د فعالیت په اثر بندیان کړل .

## د اپریدو علماو ، کیلا نو او مشرانو په یوې جرګې کې په ټاګ ووېل چه د اپریدو سیمه د پاکستان د خاوری برخه نده:

د حمل په ۲٤ نیټه د اپریدو قبیلي علماؤ ، وکیلانو مشرانو او نورو خلکو د باړوان په کلي کې لویه او ستره جرګه وکړه ، د غې جرګې د پاکستان د استعماری حکومت له تیری کوونکو اقداما تو او مداخلو څخه سخته کرکه ښکاره کړه او له حکومت څخه ئې وغوښتل چه د پښتونستان ټول سیا سي بندیان ژر خوشي کړی او د پښتونستان په ثابت حق اعتراف وکړی . جرګې د پاکستان د استعماری حکومت د غه آوازدې او پروپاګند ونه چه ګویا د اپریدو خلك په ایالتي اسامبلو او مرکزي پارلمان کې د ګډون له پاره د وکیلانو په انتخا بولو بوخت دی رد کړل او څرګنده ئې کړه چه لدې کبله چه د اپریدو سیمه او خاوره په هیڅ ډول د پاکستان د خاوری جزنده نو د پاکستان د اسامبلو او پارلمان له پاره د اپریدو د کام نما یندګانو د ټاکلو او د وکیلانو د انتخابولو موضوع بیخي منځ ته نشی را تلای او په دې باره کې د پاکستان د استعماری حکومت بې ځا یه او د خندا وړ پروپاګندونه کوم ځای نشی نیولی

## د ثور په میاشت کښې

## د اپریدو اوستوری خیلو د قبیلو درنه اولویه جرګه :

د اپریدو اوستوری خیلو د بیلو بیلو قبیلو علماؤ ، وکیلانو ، مشرانو او نورو بیشماره خلکو په خان دره کې یوه لو یه او ستره جرګه وشوه چه په هغې کې د پښتونستان په ملت باندې د پاکستان د استعماری حکومت تری سخت وغندل شول . په دغه جرګه کې فیصله وشوه چه د پاکستان د استعمار له منځه وړلو په لیاره کې به د سر او مال څخه تیریږی. هغوی د پاکستان د حکومت دا پروپاګند چه د اپریدو او ورکزو خلك د پاکستان د حکومت سره ودوستانه روابط لری دروغ او بی ځایه وګڼل او یاداچه د پاکستان په ولایتي اسامبلوکی دغو یتو ب د پاره د خپلو نمایندګانو په ټاکلو بوخت دی . هغوی وو یل که د پاکستان استعماری حکومت خپل ځوتنه اجیر کسان په خپلو ولایتي او مرکزی اسامبلو کی زمونږ د نما یند ګانو په نامه مقرر کړی نو هغوی ز مونږ په نزد هیڅ ډول اعتبار او اهمیت نلری.

## د پاکستان استعماری حکومت ته اخطار او د بادامی په عسکری تاڼه سختی ډزی :

د حمل په ۲۹ تاریخ بارکی ته نژدی په کړیګال کی د اپریدو بیلو بیلو قبیلو ستره جرګه وکړه چه په هغی کی‌علماؤ ، قومی مشرانو او نورو جذابی ویناوی وکړی‌او یو ځل بیایی په‌پوره اتفاق دپاکستان دجابر او تیری‌کوونکی‌حکومت دتیری‌په مقابل‌کی دمقابلی اومبارزی ددوام په باره کی خپل قومی تعهد نوی کړ اودپاکستان حکومت ته ئی اخطار ورکړ چه با ید ژر دپښتونستان دملت حقه حقوق محترم وګڼی او غاړه ور ته کیږد دی .

جرګی دپښتونستان دآزادی د لیاری دننګیالو مصیبت ځپلو سره همدردی او غم شریکی څرګنده کړه اواعلام ئی وکړ چه داپریدو قوم به دپښتونستان له نورو خلکو اوکامونو قبیلو سره داستعماری تیر یو په مقابل کی مبارزه وکړی او په دغه لیاره کی به له هیڅ ډول‌قربانی څخه ځان ونه‌ژغوری . دپروخمکنو یوډولګی ملی مجاهدینو دحمل په ۲۵ نیټه دکورمی په ناوه کی دسدی مربوط دبادامی په عسکری تاڼه ډزی‌وکړی‌چه د هغو په اثر یو پاکستانی عسکر سخت ټپی شو .

## دملی‌مجاهدینو له خوا دیوه پاکستانی مامورکور تەلاسی بم ورواچول شو:

دپاکستان دوه تنه حکومتی مامور ین په نوښار کی ددولتی مامور ینو د کور نو څخه په یوه کورکی دبم دچاودیدلو په اثرمړه شول. دمرکزی محکوم پښتونستان پیښور خبردی چه دحمل په‌۲۸ نیټه دملی مجاهدینو له خوا له دغو مامورینو نه د یو مامور کورته لاسی بم ورواچول شو او ز یات تاوان ئی ورواړاوه .

## دپاکستان داستعماری حکومت په نظامی‌تأسیساتو دبمونو اچول :

یوی ډلی ملی مجاهد ینو دپاړه‌چنار په علاقه کی دماتوسم په عسکری تاڼه لاسی بمونه وروغورځول اودملی مجاهدینو بلی‌ډلی پری سختی ډزی وکړی .

یو بل خبر دی چه دکورمی له‌ناوی څخه رارسیدلی‌خبروائی‌چه‌دحمل په‌۳۱ نیټه یوی‌ډلی ملی مجا هد ینو د کررمی په ناوه کی د علاقه داری ودانی ته لاسی بمونه‌ورواچول .

## د پاکستان استعماری حکومت ښاغلی خیر محمد اڅکزی‌دآزادی غوښتنی په ګناه بندی کړ :

دپاکستان استعماری حکومت دتوبی او سیدونکی ښاغلی خیر محمد اڅکزی د آزادی غوښتلو دفعالیت په ګناه بندی‌کړ اودچمن جیل ته ئی و لیږه .

## دپاکستان حکومت‌خوتنه‌آزادی غوښتونکی بندیان کړل .

دپا کستان استعماری حکومت دچمن اوسیدونکی ښاغلی‌خیر محمد ، ښاغلی‌محمداکبر خان ، ښاغلی مولا داد خان ، ښاغلی حاجی ملا فیض محمد خان او ښاغلی سید غازی خان د آزادی غوښتنی دفعالیت په اثر بند یان کړی دی .

## دپاکستان استعماری حکومت دپېښور دګاډیو داتحادیې رئیس او ځینی نور مظاهره کوونکی بندیان کړل

دپاکستان استعماری حکومت د پېښور دګاډی وانانو رئیس ښا غلی مرسلین نیولی دی ده دپاکستان داستعماری حکومت دپالیسې اوغیر دیموکراسی سیاست په ضد د پېښور دښار دګاډی وانانو دستری اوعمومی لوی مظاهرې لار ښودنه اوتنظیم په غاړه درلود. سربېره پردې پاکستانی پو لیسو یوزیات شمیر نور مظاهره کوونکی نیولی اوبند یان کړی دی .

## د بډه بیری د خلکو دکر و ندی زیاته ځمکه د پاکستان استعماری حکومت ضبطه کړی ده.

د پاکستان استعماری حکومت دبډه بیری دکلی د او سېدونکو دکروندو یوڅه زیاته ځمکه ضبطه کړ یده اوغواړی چه په هغو پاکستانی اجیرانو ئی وو یشی چه د پاکستان له لری سیمو او ځایو څخه دپښتونستان دخلکو دتنګولو په غرض را وستل شوی اوراوستل کیږی . دپاکستان حکومت ددغو ځمکود یوجریب بیه دری سوه کلداری ټاکلی ده په داسی حال کی چه په دغه ځای کی د یوجریب ځمکی مروجه بیه اوارزښت دزرو کلدارونه زیاته ده پخواهم دپاکستان حکومت دبډه بیری او دهغه ځای د نورو خلکو په زر ګونو جریبه ځمکه دعسکری ودانیو اوتاسیساتو دپاره نیولی اوضبطه کړ یده .

ددغه سیمی خلك دپاکستان داستعماري حکومت ددی خلاف حرکاتو اوجا برانه رویی له کبله سخت شاکی اوډیر یدلی دی .

## دسالارزیو علماؤ اوقومی مشرانو په پوره اتفاق اوزیات اکثریت مهم تصمیمونه ونیول.

دثور په ٤ نیټه په ماتوار کښی دسالار زیو علماؤ نمایندګانو ،مشرانو او نور و زیا تو خلکو یوه لویه اوستره جرګه وکړه دغه جرګه دقرآن عظیم الشان دځو آیتونو په تلاو ت پر انستله شوه وروسته بیا قومی مشرانو دخپلی خاوری دداتنی اود پاکستان دا ستعمار ی حکومت دتیریو په مقابل کښی ئی دهرقسم قربانیو ورکولو په حقله وینااوی وکړی جرګی په زیات اکثریت دافیصله وکړه چه ترڅودباجوړ دخلکو یوسړی ژوندی وی هغه به دخپلی خاوری دآزادولو په لیاره کښی ځان قربانوی .

## دمحمودخیلو وزیرو ملی مجاهدینو دپاکستان ځینی تاسیسات په چاودونکو موادوهواته والوزول

دوزیرو محمود خیلو یوټولګی ملی مجاهدینو دحمل په ۳۱ نیټه دسپین وام او میرا لی دتانی ترمنځ سیمه کښی یوپوخ پل په چاودیدونکو موادو وران کړ دغه شان بل ټو لګی ملی مجاهدینو دثور په ۲۸ نیټه دمیرالی په عسکر په کمپ باندی چزی وکړ ی .

## توری خیلو وزیرو دبنو دضلعی دشین گندی یوپوخ پل په چاودونکو موادو وران کړ:

دوزیرو دتوری خیلو یوشمیر ملی مجاهدینو دثور په لومړی نیټه دسپین وام په عسکری ټانه ځزی وکړی او بل ټولګی دمرکزی محکوم پښتونستان دولایت مر بو ط د بنو د ضلعی دشین گندی په سیمه کښی یو پوخ پل په چاودونکو موادو وران کړ. دوزیرو د احمدزیو یوی بلی ډلی مجاهدینو دګل کچ په سیمه کښی پهڅو دولتی موترو ځزی وکړی او هغوته ئی سخت تاوانونه ور ورسول .

## دورکزو علماؤ اومشرانو ځینی مهمی فیصلی وکړی:

دورکزو دمشرانو مخورو نمایندګانو علماؤ اونو روخلکو دثور په ٤ نیټه په ګولی بند کی ستره جرګه وکړه علماو اوقومی مشرانو دپښتونستان دملت غوښتنی دحقانیت په موضوع اود خپلی خاوری او وطن څخه ددفاع دپاره دهرډول قربانی ورکولو په حقله جذابی وینا وی وکړی .علماو اومشرانو په دغه جرګه کښی دخپل ګران هیواد پښتونستان دآزادولو په لیاره کښی دهغه ځای دپښتنو دپوره اتفاق اویووالی وجود ضروری وګڼلو اوهغه ئی د خپلوا کی لاس ته راوستلو دپاره یوغښ اومهم عامل وښود .

دغه شان له آزاد منځنی پښتونستان یوبل خبردی چه دوزیرو محمو د خیلو یو ټولګی ملی مجاهدینو دثور په ٤ نیټه عیدك ته نژدی په عسکری ټانه سختی ځزی وکړی چه د هغو په اثر یو پاکستانی عسکر مړشو .دوزیرو داتمانزیو یوشمیر ننګیالو مجاهدینو دخجوری په سرك دپاکستان په یو شمیر افرادو حمله وکړه اوڅو نفره تری زخمیان شول .دغه شان ددغه ځای دیوی زیاتی مسافی دتیلفون مزی اوُستنی مجاهدینو له منځه وړی دی .نورو ټولګیو دثور په ۳-٤-۹ نیټه دمیرامشاه عسکری چونی اود توچی په عسکری ټانه ځزی وکړی اودثور په ۸ نیټه ئی دخجوری ټانه دسختو ځزو لاندی ونیوه .

## داکوړی خټك پوخ پل دیوی ستری چاودنی په اثر زیانمن شو.

داکوړی خټك دپاخه پله تر څنګك یوه ستره چاودنه وشوه او دهغی په اثر دغه پل ته زیات زیان ورسید .

## دپاکستان داستعماری سیاست غندنه دقومی مشرانو علماؤ او مخورو جرګه

په دمجور خړی اوکوتګی کی دواړه ماموندو قومی ستری جرګی وشوی اود پا کستا ن داستعماری حکومت دتیریو دمخ نیوی لپاره ئی پوره تصمیمونه ونیول اود ملی محاذ دزیات تنظیم په باب کښی ئی فیصلی وکړی .

دا شان دورکزو څانګی خبردی چه دثور په ۹ نیټه دورکزو قبیلو لویه جرګه دعلی خیلو په سیمه کښی وشوه چه په هغی کښی علماو ،وکیلانو ،مشرانو اونورو ګډون کړی ؤ .

په دغه جرګه کښی دپاکستان داستعماری حکو مت د سیاست اساس ښکا ره شو ا و هغه ئی دپښتونستان دملت دنام ونښان دورکولو اوتباهی دپاره یواصلی هدف وښود .هغو وو یل چه

دپاکستان دحکومت ټولو پروګرامو کښې دغه هدف پروت دی چه پښتانه او پښتو ن و لس محوه اونابود کړی ،جرګې په اتفاق سره دپاکستان داستعماری حکومت څخه وغوښتل چه ژر دپښتونستان سیاسی بندیان له بند څخه راخوشې کړی او د پښتونستان په ولس نور له خپلو تیریو څخه لاس واخلی که نه نوژر به دغه ځای کښې دناآرامی اوخطر اورونه بل شی .

## ښاغلی محمدخان لوی آزادی غوښتونکی په پاکستانی جیل کښې مړشو

دپښتونستان له آزادی غوښتونکو نه یوتن ښاغلی محمدخان چه دپاکستان د استعماری حکومت له خوا دپښتونستان دزرګونو آزادی غوښتونکو بندیانو په لړ کښې بندی ؤ دملتان په زندان کښې دپاکستانی حاکمانو دزیاتو اوسختو ظلمو نو په اثر وفات شو .

## په یوه ستره قومی جرګه کښې دپاکستانی استعماری حکومت بی اساسه پرو پا ګند ردشو

دموسی خیلو ،خانزاد ه ګانو ، شینوارو ،سایو مشرانو ،نمایند ګانو ،علماؤ ، وکیلانو اوزیاتو خلکو په ګډون دثور په لسمه نېټه په کر کڼو شاه کښې یوه ستره قومی جرګه شوې ده چه په هغې کښې مهمی و ینااوی وشوی په دی ترڅ کښې دپاکستان دحکو مت دغه بی اسا سه پروپاګند په کلکه رد کړشو چه ګویا دمومندو قبیلی خپل نمایند ګان دپاکستان مرکز ی پارلمان اوایالتی اسامبلی ته معرفی کوی .جرګې په زیات اتفاق په ټینګه دپاکستان دحکومت نه وغوښتل چه دپښتونستا ن دخلکو حقوقوته غاړه کیږدی اوهغه محترم وګڼی اود بی اسا سه پروپاګنډ څخه لاس واخلی دغه شان په شمشاد کښې هم داسې یو ه مهمه جرګه د پښتو نستان دآزادی لپاره جوړه شوې وه .

## دپاکستان استعماری حکومت دچترال څو تنه نامتو مشران دآزادی غوښتلو په ګناه بند یان کړل

دپاکستان استعماری حکومت دچترال اوسیدونکی ښاغلی عمرا خان ،ښاغلی صبورشاه ښاغلی یحیی خان اوښاغلی عبدالاکبر دآزادی غوښتنی دفعالیت په ګناه ه بند یا ن کړل دغه شان یوشمیر دینی عالمان چه دپاکستان دحکومت له اسلام نه مخالف سیاست اوله مذهب نه مخالفو چارو سره ئې سخت مخالفت کاوه بندیان اوحیلو نه ولیږل شول .

## دجوزا په میاشت کښې

## دورکزو ملی مجاهدینو دورسك په سیمه کښې یوپوخ پل خراب او دبادامی په عسکری تانه ئې پوزی وکړی

دآزاد شمالی پښتونستان دورکزو یو ټو لګی ملی مجاهد ینود ور سك په سیمه کښې یو پوخ پل په چاودونکی مواد وړان کړاو بل ټولګی دبادامی په عسکری تانه سختی پوزی وکړی

## دخان عبدالغفار خان دپښتو نستان د تر مشر دبند موده نوره هم اوږده شوه

دپښتو نستان دستر مشرخان عبدا لغفار خان دبند موده داکتو برتر لسمی نیټی پوری او ږده شوه . خان عبدالغفار خان تیر کال داپریل په میاشت کی بندی اوده دبندموده

شپږ میاشتی تا کل شوی وه . دی اوس دسندد حیدر آباد په جیل کی بندی دی .
دپښتونستان ددغه سپین ږیری مشر بندپخوا هم شپږ میاشتی اوږد شوی ؤ. خان عبدالغفار خان دپاکستان له نظامی قانون سره دمخالفت په تور بندی شویدی. په تیر کال کی دخان عبدالغفار خان بند دپښتو نستان دلیکوالو ، منورینو او نور وخلکو له خوا دپاکستان د حکومت په ضد دسختو مظاهرو باعث شوی ؤ چه د هغو په اثر د پاکستان حکومت ډیر زیات خلك بندیان کړیدی ـ

## دلو یو لویو قبیلو مشرانو په یوه لویه جرگه کی دپاکستانی حکومت له مسلمانی نه مخالف سیاست په کلکه وغا نده .

دثور په ۸ نیټه په ( دیوری ) کی د علیخیلو ، ملاخیلو ، مستی خیلو ، شیخان خیلو ، رابیا خیلو ، ماما زیو ، فیروز خیلو او نورو قبیلو دمخو رو ، عالما نو ، نما یند گانو په گډون یوه ستره جرگه و کړه قومی مشر انو په دغه جرگه کی مهمی وینا وی وکړی او دپاکستان داستعما ری حکومت دآزادی اومسلمانی نه مخا لف سیاست ئی په کلکه وغا نده .

جرگی په اتفاق دا فیصله وکړه چه ترڅو پوری دپاکستان استعماری حکومت د پښتونستان دملی حقوقو اعتراف ونکړی ترهغه به ددغه حکومت په ضد دورکز دقوم مبارزه روانه وی . دی جرگی کی یوزل بیا دپاکستان استعماری حکومت داپروپاگند چه دورکزو خلکو دپاکستان مرکزی پارلمان اوولایتی اسامبلی ته خپل نمایندگان ټاکلی غلط اودروغ وبا له او هغه ته ئی ډیر بدو ویل .

## د شما لی پښتو نستان د سلطا ن خیلو او پا ینده خیلو قبیلو یو لو یه مظا هر ه و کړ ه

دثور په ۲۵ نیټه دسلطان خیلو اوپاینده خیلو قبیلو یوه ستره مظا هره و کړه او په داسی حال کی چه توربیر غو نه ئی په لاسو نوکی ؤ دانا ری ئی وهلی چه ژو ندی دی وی پښتو نستان اومړ دی وی دپاکستان استعمار .دوی په خپله دغه جرگه کی فیصله و کړه چه د ژوند تر وروستی سلگی پوری به دگران وطن پښتو نستان دآزادی او داستعمار له منځه وړلو لپاره مجادله او مجاهده کوی . قومی مشرانو دپاکستان دپښتون دښمنی سیاست په جرگه کی توضیح کړ .دغه شان دثور په ۲٦ نیټه په ملکنیو او چکدره کی ستری جرگی و شوی او په هغو کی عالما نو او قومی مشرانو او نورو په زر گونو خلکو گډون کړی ؤ هغوی وونیا ؤاو ریدلو نه وروسته مظاهره وکړه اودا ناری ئی وهلی چه ژوندی دی وی پښتو نستا ناوزمونږ قومی مشران اوسیاسی بندیان را خوشی کړی .په دواړو جرگو کی دپښتو نستان دجوړېدو غوښتنه په ټکلکه تائید شوه او تصمیم وقبول شو چه دپښتونستان دآزادو لو او تشکیل په لپاره کی به هرراز قربانی نه ځا نونه نه سپموی . ـ

## دخارجي سياحينو لهخولو دپيښور دمركزيمحكوم پښتونستان دالوګولو تفصيل

كابل‌ته راغلو سياحينو دمحكوم پښتونستان دثور د۲۸ نيټې دوحشتناكو الو ګولوخبر او تفصيل له ځا نه سره راوړی او دپيښوربښار پيښې ئې داسې بيان کړې:-
په دغو الوګو لو کې چه دپاكستان دنظامي حكومت په ضد شوی په زرګونو خلكو ګډون کړی او حتى دمغو شمير ئې ددرې لکو کسا نو په خواوشاکې اټکل کړی دی. دپاکستان نشراتي منابعو دالوګولو خبر ديوی فلم اخستونكي کمپنۍ پهضد ديوی دلي‌خلکو دمظاهرې په حيث سرسري خپور كړی دی خودا خارجي سيا حينوائي‌چه دغو ا او ګو لو سياسي جنبه در لوده او د اغتشاش کونکو دحملو په وجه دپيښور دراديو دستګا ه او ددينزهوټل‌ودانيو اوځينو نورو دولتي ودانيوته سخت زيا ن رسيدلی دی دسيا حينو په قول يل چه اغتشا ش کونکي په هو ټل کي زماکوټې ته په زو ررا ننوتل اوزما دعکا سۍ كمره اولا سي ساعت ئې وتښتاوه خودخارجي پاسپورټ په ښودلوئې حپله ده ته کوم زيان‌ندی رسولی. پهدغه وخت کې چه اغتشاش په ډير زور روانؤ نو عسكري مسلح ټو لګي دزره پوښا نو په قوت دحكومتي دوايرو اوا داري مر كز خوانه داغتشاش کوونکو دپرمختګ مخه په ډيرشدت سره ونيوله

### دپاكسانيژاند ارمو قرارګاه وته نژدیبمو نه وچول شول

پهتوره ورځ کښې دپاكستان دژاندارمو دټولګی قرار ګاه ته نژدی څوبمونهوچوول شول او دپاكستان حكومتي مقامات ئې ډير خوا شيني اووارخطا كړل‌چهدهغوپه اثرحكومتي پوليسو دغه سيمه تر مراقبت لا ندې نيولي او اوسيدونكي ئې پهپرله پسې تحقيقاتوزوروی اواذيت كوی .

### پهپيښور (محكوم مركزي پښتونستان)کې مظا هرې په ډيرشدت رواني دي او پرلهپسې په پاكستاني تأسيساتو باندې‌حملې كيږي

دپاكستاني عسكر ود سختو ډزو په اثر چه‌دثور په ۲۸ نيټهئې په پيښو ر كښې پهمظا هره كونكو كړي‌پنځه تنه مړه او درې تنه ټپيان شوی دی پاكستاني عسكر و لمړ ی دپيښور دراديو پهټيسن دچپاو كولو په وخت‌او دويم اودريم‌ځل دكابلي دروازې پهسينما اودبالاحصار ترخنګ دباز سينما باندې دحملو په وخت پهمظاهره كونكو سختې ډزې و كړ ی دغهشان دثور په ۲۸ نيټه دمی په ۱۸ څلويښت تنه او د مې په ۲٤ دجو زا په در يمه نيټه تقريباً درې سو ه پنځو س كسه دپاكستان دنظامي حكومت له خوا په مظاهره كې دګډون په ګناه نيول شو ی دی ځكه دغه مظاهر . دمرګ ، ژوبلي‌او زياتو ما لي زيا و سبب شو يدی.دغه رازددپاكستان حكومت ټولواخبارواومطبوعاتو ته امر وركړيدی چهد حكومتي‌مربوطمامورينو له كنترول نه پرته د ی ددغې مظاهرې په باب‌كوم خبر خپور نكړی دغه خبرپه پای‌كې څرګندوی‌چه حالات‌دپخوا پشان ګډود اوخراب‌دی او حكومتي‌منظم عسكر پهدرنڊو وسلوسمبال‌دي دپيښور په ښار اودمحكوم مركزي پښتونستان‌په زياتو حساسو سيمو كښې په سخت‌مراقبت اوڅارنه بوخت دی .

## په پېښور کښې پرله پسې الو ګولو او مظاهرو د پاکستان استعماري حکومت له ويرې او وارخطايي سره مخامخ کړيدی

دهٔان ورځپاڼې دمې دمياشتې د۱۹ ګڼې دخبر سره سم دپاکستان داخله وزارت د هغو اغتشاشونو او الوګولو په نسبت چه په دغو ورځو کښې دپېښور په ښار کښې شوی او په هغو کښې ديو لك نه زيات و خلکو ګډون کړی ؤ او ځينو دولتي ودانيو ته ئې دپېښوردرادیو ټيسن په شمول لزيات زيان رسولي ؤ يوه اعلاميه خپره کړه او په هغې کې ئې د محکوم پښتونستان خلکو ته اخطار ورکړی چه دپاکستان حکومت به دداسې اغتشاشونو په مقابل کې له سختې څخه کار وا خلي . دپاکستان عسکرو ددغو الو ګولو دکرار ولو دپاره له ټانګو او زره پو ښو څخه کار اخستی دی دهٔان دورځپاڼې دليکنې له مخې ئې دامريکا په قونسلګرۍ او د انګليس د کميسار د معاون په دفتر باندی د چپاو او يرغل وړلو مخه نيولې ده . دپاکستان حکومتي مطبوعاتو د حقيقت دپټولو په غرض د پښتونستان دخلکو دغه سياسي جنبش ته مذهبي رنګ ورکړی او کوښښ کوی چه دپښتنو دآزادۍ غوښتنې اغتشاشونه په بل ډول ښکاره کړی .

## د جندول په سيمه کې دپاکستان داستعماري حکومت په خلاف پاريدنې زياتې شوی دی

ددېر درباست په تيره بيا دجندول په سيمه کښې دخلکو مظاهرې او مخالفتونه ورځ په ورځ زيات شوی او هره ورځ دمخالفينو شمير لا پسې زياتيږی دغه راز دملك نوکر خان په کلي کښې دعالمانو ، ملکانو نمايندګانو او نورو قومي مشرانو په ګډون د سالارزو دخلکو يوه ستره جرګه شوی وه او په دغه جرګه کښې په زيات اتفاق داخبره ومنل شوه چه دباجوړ خلك به تول قوت او اتفاق دپاکستان داستعماري حکومت په مقابل کې ودريږی او دګران پښتونستان دآزادولو په لياره کې قربانيو ته ځانونه چمتو کړی .

دبيا نيونه وروسته بيشماره خلکو تور بيرغونه په لاسو کې نيولی او په دغه نارو چه ژوندی دی وی پښتونستان او مړ دوی دپاکستان استعمار شروع وکړه هغوی دپاکستان دحکومت داسلامي ضد اقداماتو په باره کې دخپلو مشرانو او عالمانو وينا وی ومنلی او دپېښور په پيد فاعو خلکو ئې دتجاوز او تيری غندنه وکړه اودهغه ځای آزادی غوښتونکو سره ئې خپله غمشريکی څرګنده اودپاکستاني عسکرو په لاس ئې دآزادۍ غوښتونکي زخمي کول په ګر که سره يادکړل دپاکستان داستعماري حکومت په خلاف داشان پاريدنې لا هم زياتيږی

## دپاکستان استعماري حکومت دمحکوم مرکزی پښتونستان د چارسدی يوستر عالم دهغه حکومت داسلام دښمنۍ له سياست سره د مخالفت په ګناه بندی کړ

دپاکستان استعماري حکومت دچارسدی دسيمې يولوی او مشهور عالم دداګی صاحب حق صاحب دپاکستاني حکومت داسلام دوښمنۍ سياست سره دمخالفت په ګناه و نيو او بندی ئې کړ . دغه کار دهغه سيمې خلك زيات راپارولي اودغه اقدام په ضد ئې احتجاج کړی .

## دمسعودو ننګیالو مجاهدینو د پاکستانی حکومت خومو ټر ونه‌وسوځول اومالونه‌ئی‌ورنه لوټ‌کړل

دمسعودو دبلولزو دملی‌مجاهدینو یولوی‌ډلی دشاغلی خیر محمد خان پهمشری‌دسرو کی اومدیحان دچونی پهسیمه‌کی دپاکستان ددولتی‌موټرو په یوه لویه قافله حمله وکړه اودغو لاریو ساتو نکی دویری‌نه وتښتیدل. مجاهدینو خولاربوته اور ور واچو و اوپه لار یو کی بارمالونه‌ئی پهولجه یوړل . دغه‌شان دبلولزو ملټولګی د ټا نك په سیمه کی په یو ټولګی پاکستانی عسکرو ډزی وکړی اویو تن یی‌ورخخه‌ټپی کړ. دریم ټولګی دټا نك دژاندا رم په کمپ‌لاسی بموته واچول اودغه کمپ‌ته‌ئی زیات زیان ورساوه. بل ټولګی مجاهدینودچندولی دعسکر ی چونی دالحاقیه ودانی یوه‌برخه پهچاودونکو مو ادو خرابه کړه او په د یر ۀ اسمعیل خان‌کی هم‌مجاهدینو دهغه‌ځای پهکمشنر اودهغه په ساتو نکو ډزی و کړ ی ددی بحران اوخطر ناك جنبش پهوجه پاکستانی حکو مت د بلو لز یو څو تنه مشر ا ن بند یا ن کړی دی .

## د اتمانخیلو مجاهدینو دوه‌تنه پاکستانی عسکرووژل

پههغه حمله کی چه‌داتمانخیلو ملی‌مجاهدینو دجو زا په ۱۰ نیټه د ملك پخپو ر خان په مشری دشینګس پهعسکری قرارګاه وکړه دوه‌تنه پاکستانی عسکرمړه شول. د ا شان په همدغه تاریخ په مندوچینه او ددری صاحب پهزیارت‌کی لو یی‌جرګی وشوی چه په هغه کی دسالارزیو اونورو قومونو مشرانو ګډون کړیؤ اودا فیصلی‌یی یوځل بیا تا ئید کړ ی چه مو نبز بهدپاکستان داستعمار لهمنځه وړلو لپاره هر ډول قربانی ورکوو.

## دمومندو اوساپومشرانو او عالمانو پهغا زی آ با د کی یوه لو یه غو نډه و کړ ه

دآزاد شمالی‌پښتونستان دمومندو پهغازی‌آباد کی دجو زا په۹ نیټه د مو مندو او ساپو دعالمانو مشرانو اونمایندګانو اونورو سترو کسانو په‌ګډون یوه ستره‌غونډه وشوه‌چه‌دناو ګی جناب مولوی‌صاحب پههغه‌کی یوه‌مهمه وینا وکړه. پهدغه وینا کی ئی د پا کستان د ا سلام دښمنی سیاست او استعماری تیری اوزیاتی خلکو ته شرح کړل و ر وسته ښاغلی‌ملك‌سیدخان ملك‌سلامت‌خان، اودخرکنی قاضی‌صاحب هم‌پهزړه‌پو ری ویناوی و کړ ی اوپه اتفاق‌ئی‌دا فیصله وکړه‌چه‌په‌ټول قوت بهدپاکستانی جابر حکو مت پهمقابل‌کی ودریږی. داجرګه دژوندی دی وی پښتونستان اومړدی‌وی دپاکستان استعماری حکومت اودپښتونستان دآزادی دښمنان په نارو پای‌ته‌ورسیده ،

## پهکراچی‌کی دایټالیا لوی‌سفارت دپاکستان د حکومت خبرونه‌دروغ کړه

دپېښور پهښار کی دمحکوم پښتو نستان دآزادی غوښتونکو دلوی اغتشاش د خبرونو په تعقیب چه‌دهغه پهاثر دپیښور دراډیو ودانۍ اونورودولتی ودانیوته سخت‌زیان و ر سید اود پښتنو اودپاکستان داشغالګرو قواو ترمنځه سخت‌اخوډب ونښت اومړی او ز خمیان په کی وشول، دستیځمن ورځپاڼه د۱۹۶۲ کال‌دمی دمیاشتی پهشلمه‌نیټه دباوری ټولنو لهخولی‌لیکی

چه په کراچۍ کې د ایټالیا لوی سفارت د پاکستانۍ منابعو د غه خپرونې رد کړی چه د پښتونستان د آزادۍ غوښتونکو اغتشاشونه د ایټالیا د فلم اخیستلو د یوې کمپنۍ په ضد شوی ؤ

## په محکوم پښتونستان کې د پاکستان د استعماری حکومت له خوا د آزادۍ غوښتونکو نیول لا دوام لري

د مرکزي محکوم پښتونستان پېښور د آزادۍ غوښتونکو خلکو د نیولو سلسله لا تر اوسه روانه ده او په دې لړ کې د پېښور د ښار د کریم پورې او سیدونکي ښاغلي عبدالصمد، ښاغلي آغا اقبال، ښاغلي یوسف، د پېښور د جنګي محلې او سیدونکي ښاغلي شا ولي، ښاغلي بسم الله ښاغلي شریف، د پېښور د ناصرخان د چوك او سیدونکي ښاغلي سراج الدین، د پیر د محلې او سیدونکي ښاغلي غني الله او د ناصرخان د چوك او سیدونکي ښاغلي معروف او ښاغلي محمدشا د آزادۍ غوښتنې په ګناه د پاکستان د حکومت له خوا بنديان شوي دي. د غه شان شل تنه چه د هغو مشر ښاغلي عبدالصمدخان چه په کورمې مشهوردی او اتیا تنه نور د ښاغلي سیدقاسم علیشاه په پیروۍ د اسمعیل خان د ډېرې بندیخانې ته لیږدولي دي ،

## د مومندو پولیټکل اجنټ د آزادۍ غوښتونکو له خوا سخت ووهل شو

د سالارزیو د سیمې په برامدك او د مامونډو د یوسف خیلو د قبیلې مربوط په زګۍ نومې کلي کې لویه جرګه وشوه، په دې جرګه کې په تیره بیا د باجوړ په سیمه د پاکستاني استعمار د له منځه وړلو لپاره تصمیمونه ونیول شول، په دې لړ کې د جنډول پاکستاني پولټیکل اجنټ د سالارزو او مامونډو د آزادۍ غوښتونکو له خوا سخت ووهل شو او په ډېره سختۍ ئې ځان له مرګه څخه خلاص کړ او وتښتید .

## ملي مجاهدینو د پاکستان د استعماری حکومت زیاتې ودانۍ په چاودونکو موادو ورانې کړې

د آزاد منځني پښتونستان د مسعودو د بلولزوي د شمیر ملي مجاهدینو د ښاغلي خیر محمد خان په مشرۍ د ټنۍ د کلي یو بوخ پل په چاودونکو موادو ران کړ. د غه شان د مسعودو د شابي خیلو په سیمه کې یوه دولتي ودانۍ وسوزول شوه او د رزمك د چوڼۍ لوی برج او په ساړه راغه کې ئې یوه حکومتي ودانۍ په چاودونکو موادو والوزوله .

## یوه لویه تاریخي غونډه د مامونډو په پالنګټ کې وشوه

د جوزا په ۲۲ نېټه په پالنګټ کې د مامونډو د قبیلو سترو او مشهورو مشرانو یوه تاریخي جرګه وکړه چه داور بازیو برو زیو، عمرخیلو او یوسف خیلو قبیلو لویو کسانو په هغه کې ګډون کړی ؤ او په هغه کې د پښتونستان د خپلواکۍ او د پاکستان د استعماردسیسې په حقله جدا بې وینا وې وشوې او دا فیصله په کې بیا تائید شوه که د دې قبیلو څخه چا د پاکستان د استعماری حکومت سره لارچار او مرسته وساتله نو د یو خاین په حیث به هغه سره معامله وشي، کور به ئې وسېزل شي او خپله به د ملك څخه بهر کړی شي په د غه جرګه کې د غو مشرانو ګډون کړی و د شاګو ښاغلي ملك سردارخان، د شاګو ښاغلي پاینده خان، د ذرګۍ مولوی سیدجان، د ډېره کې

ملك پام جان د کوی وانه ښاغلی ملك شاد ملوك د کخ صاحب حق صاحب دد بره حافظ جی صاحب د کرپانی ملك طالب خان د گټکی ملك داور خان، د کس ملك لعلی خان ، ملك اکدر خان، ملك شاه زمین خان، د بهانو ملك محمد طاهر خان، ملك فضل الرحمن، شهزاده گل او ملك محمد خان د ډبر ملك یمین خان او ملك اثر خان، د چینگی ملك رحمت خان، د شینکوټ ملك سلطان خان او ملك زرغون خان، د کبزی ملك رضا خان د باندارې ملك عبدالصاحب، ملك عبد الملك، ملك روشن علی خان، د ډبر ملك علم خان، ملك غلام محمد خان ملك بورام او صاحب حق صاحب ، ملك اهل رسول خان، ملك عبدالمحمد خان، ملك حکیم شاه خان ملك پیوست خان، ملك گل خان، ملك سید احمد خان، ملك نعمت الله او ملك کچکول خان د غه ستره او تاریخی جرگه د ژوندی دی وی پښتونستان او مړ دی وی استعمار او د پښتونستان د ملت د دښمنانو په نارو پای ته ورسیده .

## مرکزی محکوم پښتونستان پیښور کی د جوزا په ۲۱ نیټه په چارسده کی داستعماری پلانونو په ضد مهمې فیصلې وشوې

د محکوم مرکزی پښتونستان ـ پیښور په چارسده کی د جوزا په ۲۱ نیټه یوه مهمه اوستره ټولنه و شوه چه په هغې کی په زرگونو کسانو علاوه د ملی عوامی گوند مشرانو گډون کړی و د غه غونډه کی د پښتونستان ملت باندی د پاکستان د استعماری حکومت ظلمونه او تیری یاد شول او د جرگی له مشرانو له خوا مهمی وینا وی وشوی او قومی جذاب شعرونه ولوستل شول چه زیاتی اوازدی چك چکی ورسره کیدی او د غه نارې وهل کیدې چه ژوندی دی وی پښتونستان او ژوندی دی وی خان عبد الغفار خان په دغه جرگه کښی دا فیصله وشوه چه د یو یونټ په خلاف دی ژر تر ژره ترتیبات ونیول شی او د ملی محاذد تنظیم د پاره دی پوره اقدامات وشی او د سیاسی بندیانو د ژر خوشی کیدو او د خودارادیت د حق د ثابتو لو په لیاره کی دی د آزادی غوښتونکو فعالیت شروع شی د غه شان د پاکستان استعماری حکومت د لنډ ی او سیدونکی ښاغلی سیف الرحمن خان او ښاغلی محبوب علی خان د آزادی غوښتنی په گناه بندیان کړل همدغه رنگه د پیښور د پوهنتون شاگردانو غوښتل چه د خوشحال خټك په نامه یوه ادبی غونډه وکړی او مقالی او شعرونه په کی ولولی خو د پوهنتون شاگردانو ته د پوهنتون د مامورینو او پاکستانی حاکمانو له خوا د اجازه ور نکړی شوه لکه دی کار چه د پوهنتون د شاگردانو په منځ کی سخته پاریدنه او کرکه پیدا کړه د پاکستانی استعماری حاکمانو د چارسدی ادبی ټولنی ته هم ددی اجازه ور نکړه چه د پښتو مشهور شاعر علیخان د یاد ونی په مناسبت د مشاعری مجلس جوړ کړی .

## ملی مجاهدینو یوی پاکستانی پسته خانی ته اور وروا چو و ...

په آزاد منځنی پښتونستان کښی د ښاغلی عنایت الله خان په مشری د مسعود د شمن خیلو یو ټولگی مجاهدینو د چغملی په عسکری تانه یرغل وکړی او هم ئی د شینگی په عسکری پست باندی حمله وکړه او د پاکستانی قواوته ئی زیات تاوان ورساوه همدا شان په مدیجان کی د دولتی لاریو په یوه قافله مجاهدینو حمله او تلفات ئی و رو رسول ، د خرگی دا و بو

رسولو ماشین داسی بم په اچولو خراب کړ دغه رنګه دلو اړ ګی مجاهدینو د جوزا په ۲۲ نیټه دګاګری عسکری پسته خانی تهاوراچولی اوهغه ئی وسوه .

## دهند پښتون جرګی دخان عبدالغفار خان دبند موډی دزیاتیدو په نسبت اعتراض او کر که ښکاره کړه

دهند دپښتون جرګی چه دمولانا محمد اکبر په مشری دجوزا په ۲٤ تاریخ غونډه وکړه په هغه کی مولانا محمد اکبر خان دوینا په ترڅ کی دپښتونستان دسترمشر خان عبدالغفار خان دبند دموډی زیاتیدو له امله دپاکستان دحکومت اقدام یو ناروا او غیر انسانی عمل ښکاره کړه او وی ویل چه د اسیظلم دنړی هر آزادی غوښتونکی اوبشریت غوښتونکی ورته بدوائی ئوغنده ئی کوی ده وویل چه په خان عبدالغفار خان سربیره چه د سپین ږیر توب او زړښت په حالت کی ددغه استعماری حکومت دسختو ظلمونو سره په بندکی مخامخ دی، دپښتونستان ۲۲ زره تنه آزادی غوښتونکی پښتانه هم په پاکستانی زندانونو او جیلونو کی یو ډیر دخواشینی وړ حالت لری او د انسانیت نه لری روبه روسره کیږی مولانا وویل سردد ی چه د پاکستان خلکو دپاکستان له استعماری حکو مت څخه بیا بیاغو ښتی دی چه ټول سیاسی بندیان خوشی کړی خو حکومت تراوسه دخلکو ددغو غوښتنو څه پروانده ساتلی مو لانا محمد اکبر دپاکستان عسکری حکومت دخنداوړ وګاڼه او په مجلس کی ئی یوه داسی تصویب نامه لاسلیك کړه چه په هغی کی دپښتونستان دمشر خان عبدالغفار خان د بند دموډی اوږ دیدل په کلکه غندل شوی، او کر که ورنه ښکاره شوی دی تصو یب نامه کی دپاکستا ن له حکومت څخه په کلکه تقاضا شوی چه خان عبدالغفار خان او دپښتونستان ټول سیاسی بند یان ژر خوشی کړی . ـ

## دسرطان په میاشت کښی

## یو شمیر ملی مجاهدینو دپاکستانی ژاندارم په قرارګاه بمونه واچول

دآزاد منځنی پښتو نستا ن د مسعو دو منزیو یو شمیر ملی مجاهدینو دښاغلی خیرمحمد خان په لار ښودنه په کانی ګورم کی ددولتی ودانی یوه برخه په چاودونکو مواد و ورانه کړه او بل ټو لګی په ټانګ کی دپاکستانی ژاندارم په قرار ګاه باندی خو لاسی بمونه واچول او هغی تهئی زیات تاوان ورساوه، همدغه شا ن دبهلولزی یویوی ډلی درزمك عسکری کمپ په چاو دونکو موادو زیانمن کړاو پوره تاوان ئی وروړساو ـ

## دبیټنو اوبالو لزیو مجاهدینو په پاکستانی نظامی تأسیساتو اودموټرو په کاروان حمله وکړه

د آزاد منځنی پښتونستان د بیټنی یوبل ټولکی ملی مجاهدینو ښاغلیعلی محمد خان په مشری د خیرو خیلو په سیمه کی ددولتی لاریو په یوه کا روان حمله و کړه اوسخت تاوا نونه ئی وروا ړول دپاکستان استعماری حکومت په دغه پیښه کی دګډو ن په الزام په محکومو سیمو کی ښاغلی سرور خان ، ښاغلی علم خا ن ښاغلی اکبر خا ن او ښا غلی پاد شا خان بیټنی نیولی اود بنو جیل تهئی استولی دی .

بل ټو لګی ملی مجا هدینو دښاغلی علی محمد خا ن په لار ښودنه ډانګ په سیمه کی د جوزا په ۲۵ نیټه په چاودونکو موادو یو پوخ پل خر اب کړه اویوه دولتی ودا نۍ هم په چاودو نکو موادود یوټولګی مجاهدینو له خوا والو زو ل شوه د بالولز یو ځینو ملی مجا هدینو د جندولی په عسکری چونۍ باندی لاسی بمو نه غو ر ځولی اوسخت زیا ن ئی ورورسولی دی همداشان ئی دفارغی په عسکری چونۍ سخت باټو نه وچول اوزیان ئی وررساو.

دغه رنګه په باجوړ کی دجوزا په ۳۱ نیټه دماموندو یوټو لګی ملی مجاهدینو دملك شیر علی خان په مشری دښار په عسکری کمپ ډزی وکړی او پاکستانی قواوته ئی تاوان ورورساوه .

## دماموندو مشرانو او عا لمانو په یوه تا ریخی جر ګه کښی ځینی مهم ا و تا ر یخی تصویبونه وکړل

د لوی ماموندو د یو سف خیلو ، مسعود خیلو، عمر خیلو ، سلیمان خیلو او دخلوزی ملا خیلو د قبیلو په ستره او لویه جرګه کی چه په هغو کی عالمانو ، ملکانو ، نمایندګانو او د کام مشرا نو په ګډون نورو زرګونو خلکو ګډون کړ ی ؤ دا غونډه چه دسرطان په دو همه نیټه وشوه په هغه کی داسی مهم تصویبونه وشول چه هغه د پاکستان دحکومت په ضد دپښتو نستان دخلکو دمبا رزو ددوام په باره کی دی ورو سته له هغه چه مشرا نو دپاکستان د استعماری حکومت دتیری په مقابل کی د اتحاد دلزوم په باب کی مهمی وینا و ی وکړ ی په جرګه کی دغه مو اد تصو یب شول .

لومړی ـ مونږ دلوی ماموندو دټو لوقبیلو خلك یوځل بیادپاکستان داستعماری حکومت د تجا وزونو په مقابل کی دمبارزی ددوام او دپښتونستان دجوړ ید ودپاره دمجاهدو په حقله خپلی پخوانۍ فیصلی ا و تعهدونه تا ئید و و او تعهد کو و چه دپښتونستان د جوړیدو د مبا رزې په لیاره کی له هرډول قربا نۍ ور کولو او کوښښونوڅخه ډډه نه کوو .

دو هم ـ څرنګه چه دباجوړ خلك دپاکستان له ا ستعما ری حکومت سره د جګړی په حالت کی دی با ید د قومی اوملی ګټو د ساتلو په غرض ټول ذات البینی اختلا فو نه یوی خواته کیښودل شی او ترهغه وخته پوری چه دپاکستان استعماری حکومت دپښتونستان دټول ملت دآزا دی مسلم حق و نه منی هیڅ ډول ذات البینی مسائل چه د طبقاتو دجلا کیدو او اختلاف موجب کیږی تر توجه لاندی و نه نیو ل شی .

دریم ـ تر هغه وخته پوری چه د پاکستان استعماری حکومت دپښتو نستان دملت په حقه حقوقو اعتراف ونکړی ددغه استعماری حکومت په ضد به زمونږ مبارزی دوام و کړ ی .

څلورم ـ له مونږ څخه هیڅ یو تن داحق نلری چه دپاکستان له استعماری حکومت سره دو ستانه ا ر تباط پیدا کړی او مخا لف کو و نکی ته به دګناهکار په حیث سخته سزا ورکړی شی .

پنځم ـ مونږ د آزاد پښتو نستان د ټولو قبیلو نه غو اړو چه دخپلو ملی چارو دتنظیم د پاره یوه ستر جرګه جوړه کړ ی .

شپېزم ــ دغه رنګه مونږ د خپل ور ور ملت اوحکومت افغانستان څخه د زړه له کومې شکریه کړو چه دپښتونستان دملت سره یې د هغه دآزا دی غو ښتنې په مبارزه کې اخلاقي د قدرو پر همکارې کړې دي دن غومشرانو په جمله کې چه په دغه تاریخي جرګه کې ئې ګډون کړی ؤ مولوي غلام رباني . ملک دوست محمد خان ــ مولانا صاحب جان حاجي عطامحمد ، ملا نادر خان ، ملا امین الله خان ، ملا سید حبیب ، فضل ملا خان ملک شیر علیخان ، دزیګی ملک ، سید حبیب د ملنګي ملک ، نعمت خان ، داګری ملک حکم شاه او ملک پوست خان ، دملنګي ملک مرید خان او د میني ملک عمر خان ملک مزمل خان ، ملک‌عبد الرحمن خان ، ملک حلیم سید ، ملک عبدالمحمد ، حاجي نورمحمد خان او حاجي محمد شریف خان د غنډيبي او سید و نکي دبکرو ملک‌محبت خان او ملک عیسی خان ،دګیری ملک‌سربلندخان ، ملک اهل‌رسول‌خان، د کړیکال ملک‌ماخان‌اوملک‌فضل حق‌خان، وکیت‌ګوټ‌ملک‌شاتو، ملک‌قیامت‌او‌ملک‌سیدباهوخان، او د غونډول د کلي ملک شاه افضل خان هم شامل و . ــ

## دملي‌مجاهدینو له خوا یو پاکستاني منصبدار وژل شوی‌او څوتنه‌پاکستاني افراد سخت ټپیان شوي دي .

په څو نښتوکې چه دجوزا په دیر شمه نیټه اودسرطان په لومړۍ‌نیټه د ملي مجاهدینو او د پاکستان د استعماري قوا و تر منځ وشوه یو تن پاکستاني منصبدار وژل شوی او د پاکستاني استعماري‌قواو ته ئې مالي‌تاوانونه‌اړولي دي : په‌دغو نښتوکې څوتنه‌پاکستاني افراد ټپیان شوي دي . د جوزا په ۳۰ نیټه د ماموندو یوه ټولګی ملي مجاهدینو د ملک ګل‌بدین خان په مشرۍ د بنار په کمپ سختي ډزې وشوې . دغه شان دسرطان په لومړۍ نیټه د چارمنګ یوشمیر نور و ملي‌مجاهدینو د ملک علي باز خان په مشرۍ او داتمانخیلو بلې ډلې ملي مجاهدینو د ملک‌ګونکټ خان په‌لار ښود نه دبنارپه عسکري کمپ ډزې‌وکړې او تاوانونه‌یې وروا ړول . ــ

## د پاکستان د استعماري‌حکومت داخله وزیرو‌یل چه‌خان عبدالغفارخان مجبور دی چه نور هم په جیل کښې پاتې ئې

د رویټر آژانس خبروائي : د پاکستان د اخله وزیر ښاغلي‌حبیب‌الله خان ووړمه ورځ و ویل چه د پشتونستان مشهور او ستر مشر او زعیم خان عبدالغفار خان مجبوردی چه نور لاهم په جیل کې شپې ورځې تیرې کړي . خان عبدالغفار خان دتیرکال داپریل‌په میاشت کې د پاکستان د نظامي قانون په تحت کې بندي شوی دی . ــ

## داتمانخیلو ملي مجاهدینو په جندول کې یو پوخ پل‌وران کړ .

د اتمانخیلو یوې ډلې ملي مجاهدینو د جوزا په ۲۷ نیټه په جندول کې دشکرکلي ته‌نژدې د سړک یو پوخ پل په چاودونکو موادوو وران اوله منځه یوړ .

**د پاکستان تنګي‌نومي تاڼه‌دملي مجاهدینو له خوا ونیول شوه اووسیزل‌شوه**

دلو ارګي په جنوب کي دتنګي تاڼه دیوی ډلي ملي مجاهدینو له خوا نیول شوی‌او بیا اور وروا چول شو او بیخی وسوزول شوه . دملي مجاهدینو دغه حمله دجوزا په ۳۰ نیټه په دغه تاڼه باندی‌شوی‌وه .

**په یوی لوی مهمی جرګی کی دپاکستان‌استعماری‌حکومت د پښتنو ددین‌اوملی ناموس غلیم وباله شو**

دسرطان په ۳ نیټه دچینګی دبیا عمر بابا په زیارت کی دا تما خیلو د پنځه ګونو قبیلو د عالمانو، مشرانو ، روحانیونو او زیاتو خلکو په ګډون ستره او مهمه قومي جرګه شوی وه . مولا نا عبد الله او قاضی حبیب ګل په دغه جرګه‌کی پارزه پووی وبناوی وکړی او وی ویل ځرنګه چه دپاکستان استعماری‌حکومت د پښتونستان دخلکو ددین‌اوملی‌ناموس دښمن دی نولدی امله دهغه استعماری حکومت دتیریوپه مقا بل کی مبارزه لەدیني وجایبو او بشری اصولوسره موافقه لده . په جرګه کی نور و قومي مشرانو هم وینا وی و کړی او دپاکستان د استعماری حکو مت پرو ګرامو نه کی ځرګند کړل جرګی درایو په‌اتفاق فیصله وکړه چه دپاکستان داستعماری حکومت د تیریوپه ضدخپلی مبارزی‌ته دوام ورکولی او ترڅو پوری چه دپاکستان استعماری‌حکومت دپښتونستان دخلکو حقوق ونه‌منی‌داتما نخیلو قام په‌آرام نشي .

**دپاکستان په یوه دولتي و دانۍ ملي مجاهدینو لاس بمونه وا چول**

دجوزا په ۲۸ نیټه یوی ډلی ملی مجاهدینودکورمی‌دپولیټیکل اجنټ‌داستو ګنی‌په‌ځای سختي ډزی وکړی . دغه شان بل ټوګی مجاهدینو دجوزا په ۲۹ ورځ په پاړه چنارکی په یوه دولتي ودانۍ لاسی بمونه واچول او تا وان ئی‌ور ورساو . بل ټولګی ملي‌مجاهدینو دسرطان په دریمه نیټه دادینه شیربه تاڼه باندی ډزی وکړی او دمانوسم په تا ڼه با ندی ئی لاسی بمونه وا چول .

ملي مجاهدینو نورو ټو لګیو دسرطان په لو مړی او در یمه‌نیټه دسدی په علاقه داری او دبا دامی په عسکری تاڼه باند ی ډزی و کړی او بل ټو لکی ملي‌مجاهدینو په کرمان کی په دولتي ودانۍ باندی لاسی بمونه واچول او تاو ان ئی ور ور سا ؤ

**دپاکستان‌استعماری حکومت په پیښور کی دیوه قانون دان ځوی د آزا دی‌ه تمایلاتولرلو په‌ګناه بندی‌کړ**

دپاکستان استعماری حکومت دکوهاټ دیوتن قانون دان زوی‌ښاغلی غلام محمد خان دآزادی غوښتنی دتمایلاتوار لو او دپا کستان داستعماری حکو مت د ګما شتګانو په ضد دوینا په ګناه او جرم بندی کړی دی.

یوشمیر ملي مجا هدینو په دی وختو کی داقرب ډاګ‌په سیمه کی په زیاته اند از ه دتلفون مزی له منځه وړی دی .

## ملی مجاهدینو په پاکستانی عسکری تاسیساتو پرله پسی سختی حملی وکړی او درانده تاوانونه ئی ورواړول

دسرطان په ۷ نیټه دماموندو او سالارزو یوشمیر ملی مجاهدینو د ښاغلی سراج الدین خان په مشری دښار په کمپ حمله وکړه او ددغه کمپ ساتونکو دملی مجاهدینو په ضد متقابلی ډزی کړی دی چه ددواړو خواو ترمنځ اوږده نښته وشوه بلرپوټ دی چه دسالارزو او اتمانخیلو دملی مجاهدینو ډلو دسرطان په ۸ نیټه او ۹ نیټه دښاغلی ملك گلبدین او ښاغلی علی باز په مشری دښار په عسکری کمپ حمله وکړه او پاکستانی قواوته ئی درانده تاوانونه واړول .

## دسالارزو او ماموندو ملی مجاهدینو په پاکستانی نظامی ځایونو حملی وکړی

دسالارزو یوشمیر ملی مجاهدینو دښاغلی گوجرخان په مشری دسرطان په ۷ نیټه د ښار په کمپ حمله وکړه. دغه شان دماموندو یوی ډلی ملی مجاهدینو دښاغلی عبدالمتین خان په لاربښودنه دسرطان په ۱۲ نیټه دښار په نظامی کمپ حمله وکړه او هغه ته ئی پوره تاوان وروړساوه

## غاری خان وویل چه په پاکستانی بندیخانو او جیلونو کی قومی مشران دناروغی په حال ژوند کوی

دمرکزی محکوم پښتونستان دنوښار دنفوذ لرونکو شخصیتونو څخه یو تن ښاغلی غاری خان چه نوی له بندخخه خلاص شوی دی دوینا په ترڅ کی و یلی دی چه زیاتره قومی مشران لکه عبدالعزیز خان حسین بخش کوثر، میرمهدی شاه مهدی، عاشق شاه باچا، اظهر بابا، حاجی زمان خان اجمل خټك، زمره خان، شاهجهان خان او یعقوب خان په محبس کی دناروغی په حال ژ و ند تیروي او ددوی علاج او دارو درمل ته توجه نه کیږی .

ده وویل چه دپاکستان محبسونه دپښتونستان دسیاسی قیدیانو څخه ډك دی او دهغوی ټولو سره ښه سلوك اورویه نه کیږی ،

## دملی مجاهدینو په حمله کی دوه پاکستانی عسکر ووژل شول

په هغه نښته کی چه دښار دکمپ دساتونکو او ملی مجاهدینو دډلی ترمنځ وشوه دوه تنه پاکستانی عسکر مړه او دوه تنه نور سخت ټپیان شول .

دغه حمله دسرطان په ۹ نیټه دماموندو دملی مجاهدینو له خوا دښاغلی عبدالصمد خان په مشری په دغه کمپ شوی وه .

## دورکزو عالمانو او مشرانو په یوی درنی تاریخی جرگه کی فیصله وکړه چه دپاکستان استعماری حکومت دی ډیر ژر دپښتونستان سیاسی بندیان خوشی کړی

دجوزا په ۲۱ نیټه په داین خیړی کی دعالمانو مشرانو او نمایندگانو په گډون د ورکز و خلکو ستره او تاریخی جرگه کړی وه .

جرگه دقرآن کریم دځو آیتونو په تلاوت پرانستل شوه وروسته له هغه قومی مشرانو دخپلو ویناو په ضمن کی دآزادپښتونستان دنیولو دهیلی په باب کی دپاکستان د استعماری حکومت پروگرامونو ته شرح ورکړه او دوطن ددفاع په لیاره کی ئی دهرډول قربانی دورکولو د پاره

دقومي اتحاد ضرورت اودقوم تياري تائيد کړ. جرگې دا يو په اتفاق دهيواد ددفاع او آزادۍ پهلياره کې دملي مجاهدو دوام تصويب کړ اودپاکستان لهٔ استعماري حکومت څخهٔ ئې وغوښتل چهٔ ژر د پښتونستان سياسي بنديان خوشي کړي اودباجوړ په خاوره باندې لهٔ تيري څخه ډډه وکړي د آزادمنځني پښتونستان رپوټ دی چه دسرطان په ۲۰ نيټه د مولانا صنوبرخان په مشرۍ دوزيرو دا حمدزيو دقبيلې دمشرانو اوخلکو په ګډون په شنه ورسك کې ستره جرگه شوې وه جرگې دپاکستان د حکومت هغه استعماري پروگرامونه سخت وغندل چه دپښتونستان د ملت په ضدئې جوړ کړيدي اوهغه حکومت تهٔ ئې اخطار ورکړ چه دپښتونستان ملت به د خپل خاورې ددفاع اوآزادۍ اخيستلو پهلياره کې دهرډول قرباني لهٔ ورکو لوڅخه ځان و نهٔ ژغوري .

## دمحکوم پښتونستان دچوك يادگار په يوې ستره غونډه کې دپاکستان دعسکري حکومت ظلمونه وغندل شول

دسرطان په ۲۶ نيټه دښاغلي ملك جهانگير خان خليل په اهتمام د پيښوردښار په چوك يادگار کې ستره اومهمه غونډه شوې وه پهٔ دغه غونډه کې دمرکزي محکوم پښتونستان دټولو طبقو او گوندو مشرانو ګډون کړی اودخلکو ټولنه پهٔ داسي حال کې چه لهٔ شلوز رونتو نه زياته وه داناري وهلې چه ژوندي دې وي آزادي اومړ دې وي اسارت. زمونږ بنديان خوشي کړیء اوزمونږ پهٔ اساسي حقوقو اعتراف وکړئ مشرانو پهٔ خپلو جذابووينا وکې دعسکري حکومت ظلمونه اوحکومتي اوسني قيود سخت وغندل. دغې ستري اوتاريخي غونډې پهٔ اتفاق سره تصويب وکړ چه بايد ټول سياسي بنديان کهٔ دتحفظ عامه اوامن عامه ترعنوان لاندې نيول شوي وي اويادنظامي حکومت لهٔ مقرراتو څخهٔ دتخلف پهٔ الزام بنديان شوي وي ژر بايد خوشي شي اوټول ضبط شوي جايدادونه دهغو خاوندانو ته بيرته ورکړې شي .

## ملي مجاهدينو په يوه حمله کې دوه پاکستاني عسکر ووژل ـ

په هغه حمله کې چه ملي مجاهدينو په جباري او کرکڼې نومي سيمه کې د پاکستان په يوه عسکري گزمه وکړه د پاکستاني قواو له عسکرو نه دوه تنه ووژل شوي ويو تن سخت ټپي شو .

دغه رنګه دسرطان پهٔ لومړۍ نيټه دمسعودو يو ټولگي ملي مجاهدينو دگومل دسيمې مربوط پهٔ مرتضي نومي علاقه کې پهٔ يوه دولتي ودانۍ لاس به وونه وغورځول چه دهغو په وجه و دانۍ او ساتو نکو تهٔ ئې زيان رسيدلی دی .

## دپاکستان داستعماري حکومت په يوشمير مامورينو، عسکرو اونظامي ودانيو حمله

دميچن خيل بابا دزيارت پهٔ سيمه کې دملي مجاهدينو يوې ډلې دپاکستان د حکومت په يوشمير مامورينو اوعسکرو سختي ډزې وکړې، بل ټولگي ملي مجاهدينو دسرطان په پنځمه نيټه په مرامشاه کې يوه دولتي ودانۍ پهٔ چاودونکومواد و زيان منه کړيده. دشمالي پښتونستان باجوړ رپوټ دی چه داتمانخيلو دملي مجاهدينو ډلو دسرطان په ۱۳ او ۱۵ نيټه دملك گونكټ خان پهٔ مشرۍ د ښار په عسکري کمپ حمله وکړه اوزيات تاوان ئې ورورسا وه .

## دسالارزو مشرانو او عالمانو دیوی تاریخی جرگی په پای کی فیصله وکړه څو چه دباچوړ خاوره د پاکستانی استعمار د تیری ویره موجوده وی دسالارزیو خلك به خپلو منځو کی خپل ټول اختلافونه یوه خوا پریږدی

دسرطان په ۱۵ نیټه په شنکرگل کی قومی ستره جرگه شوی وه چه په هغی کی د سالار زیو مشرانو عالمانو او زیاتو خلکو گډون درلود په دغه جرگه کی ملك محمدعظیم خان، ملك حبیب الله خان ملك بانی خان، ملك نوکر خان، ملك گل محمدخان او ملك گل همیش خان مفصلی وینا وی وکړی په آخر کی درا یو په اتفاق تصویب شو تر هغه وخته پوری چه د باجوړ په خاوره باندی د پاکستان داستعماری قواوو د تعرض خطر موجودوی دسالارزو قوم به په خپلو کښی سره ټول اختلافونه ټال کړی او په اتحاد سره به د خپلی خاوری دساتلو په لیاره کی له هر ډول قربانی څخه ډډه و نه کړی بل خبر وائی چه په بنیار او مومندو کی د پاکستان په نظامی تاسیساتو باندی د ملی مجاهدینو حملی دوام لری او د پاکستانی مقاماتو د سخت تشویش باعث شوی دی .

## د شوقدر په تاریخی جرگه کی د پاکستان داستعماری حکومت پر ضد مهمی فیصلی وشوی

دسرطان په ۸ نیټه د ملی عوامی گوند دغړی ښاغلی قسمت خان په مشری په شوقدر کی ستره جرگه شوی وه چه په زرگونو خلکو په کی گډون درلود غونډه دقرآن کریم دخو آیتو په تلاوت پرانستل شوه . وروسته د خټکو دا کوړی او سیدونکی ښاغلی غلام فاروق ملی او جذاب شعر ولوست وریسی ښاغلی رضوان الله کاکاخیل په خپله مفصله وینا کی د پښتونستان په خلکو باندی د پاکستان داستعماری حکومت ظلمو او تشدد ته شرح ورکړه او د پښتونستان د بندیانو د ژر خوشی کولو دغوښتنی په ضمن کی یی وویل چه د پښتونستان ستر مشر خان عبدالغفار خان هیڅ گناه نلری یی لدی چه د پښتونستان د خلکو د حقوقو د پاره مبارزه کوی . ارباب محمد سعید خان د خپلی وینا په ضمن کی د پاکستان له حکومت نه په کلکه وغوښتل چه ژر د پښتونستان ټول سیاسی بندیان خوشی کړی او ضبط شوی جایدادونه ئی بیرته ورکړی جرگی درا یو په اتفاق په یو فیصله لیك کی د پاکستان د حکومت څخه وغوښتل چه ژر تر ژره د پښتونستان ټول سیاسی بندیان خوشی کړی او جایدادونه ئی بیرته ورکړی .

## دملی مجاهدینو له خوا دیوی چاودنی په اثر دښار د کمپ ملازم ووژل شو

دپاکستان یوتن ملازم دهغی چاودنی په اثر چه د ښار په عسکری کمپ کی دیو ټولگی ملی مجاهدینو له خوا شوی وه مړشو . دماعتبر وضعی مجاهدینو نورو ټولگیو دسرطان په ۱۸ او ۱۹ نیټه دښار په کمپ ډزی وکړی او د دښمن قواوو هم په مقابل کی د مجاهدینو په ضد سختی او بی ساری ډزی وکړی .

### ملی مجاهدینو د تیلفون مزی له منځه وړی او په چاودیدونکو موادو ئې تاوانونه اړولی

د مسعودو دښمن خپلو د ملی مجاهدینو ټولګیو د سرطان په ۱۷ نیټه د جندولی او سرو کی په عسکری چونیو باندی ډزی کړی او تاوانونه ئې وراړولی دی دغه راز د مسعو د منزیو بیلو بیلو ټولګیو د ښاغلی شاه بهرام، ښاغلی پاچاشاه خان، ښاغلی ګل محمد خان، ښاغلی عظیم خان ښاغلی نبی خان، او ښاغلی ګل خاتم خان، په مشری د سروکی، جندولی، سپیلتوی او لدی په عسکری چونیو ډزی وکړی او د پاکستانی قواوله خوا هم په دوی ډزی شوی دی یو شمیر نوراو ملی مجاهدینو د سرطان په ۱۵ نیټه د مسعودو د منزیو او سیدونکی ښاغلی ګل حلیم خان په مشری د ټانک په سیمه کی زیاته مسافه د تلفون مزی له منځه وړیدی بل ټولګی ملی مجاهدینو د سا ړه راغه د تحصیلدار کور په چاودونکو موادو وران کړ دغه شان یو بل ټولګی ملی مجاهدینو د سرطان په ۲۲ نیټه د زیړانیو په سیمه کی په یوه قافله دولتی لاریو ډزی وکړی وهغوته ئی زیان ور ساؤه.

### په کوبټه کی د یوی سختی چاودنی په اثر ۱۱ تنه ټپیان شویدی

د سرطان په ۲٤ نیټه په کوبټه کی یوه سخته چاودنه شوېده چه د دغی په اثر ۱۱ تنه ټپیان شویدی.

### د پاکستان د استعماری حکومت له خوا بندی شو

د پاکستان استعماری حکومت د کوهاټ د ضلع د هنګو د تحصیل مربوط د درسمندد کلی او سیدونکی ښاغلی ملک سرور خان د ازادی غوښتنی د فعالیت په الزام نیولی او د کوهاټ زندان ته یی استولی دی.

### دا لاندی په میاشت کښی:

### د محکوم پښتونستان عالمانو د پاکستان د حکومت نه اطاعت اعلام کړ:

د سرطان په شلمه نیټه د مولینا سید ګل بادشاه په مشری چه د مرکزی محکوم پښتونستان نظام العلمادی، تر ریاست لاندی یو لویه غونډه شوی وه چه هغی ته په زرګونو عالمانو د پښتونستان دخلکو د بیلو بیلو ډلو نمایندګان و رغلی ؤ. په دغه غونډه کی مولینا سید ګل بادشاه مولینا عبدالقیوم پوپلزی او مولینا غلام غوث هزاروی وینا وی وکړی چه د حاضرینو د زیات هیجان سبب شوی او په ډیر حرارت سره تائید او استقبال شوی.

غونډی د رایو په اتفاق دغه مواد تصویب کړل.

۱ـ څرنګه چه د پاکستان حکومت اوسنی واکمن د خلکو هیلو ته هیڅ اهمیت نه ورکوی نو له دی کبله دغه حکومت شرعا درست ندی او مونږ څانونه د دغه راز حکومت په اطاعت مکلف نه بولو.

۲ـ د پاکستان اساسی قانون نه د مذهبی اصولو څخه منبع اخستی ده او نه د ملیت د اساس سره برابر دی نو ځکه هغه نه منو او باید ژر تر ژره فسخ شی.

۳ـ ټوای مسیحی تعلیمی، تربیتی، معالجوی او تبلیغاتی اداری دی وتړلی شی او د دغو ادارو سرپرستان دی چه تل د اسلام له دین څخه خلک مرتدوی وایستل شي.

٤- ټول سیاسی بندیان اومذهبی عالمان چه دپاکستان دحکومت له خوا بندیان شوی او په بندی خانو کی په افسوس ناکه ټول ژوند کوی دقوم نمایندګان اودوطن د آزادی مجاهدین دی باید ژر له محبسونو څخه خوشی کړی شی.

٥- دافغانستان سره دروابطو دیری کولو په اثر زرګونه سوداګر او کارګر په بیکاری اخته شوی او تجارت ئی ځنډیدلی دی ولهدی درکه زښت ډیر تاوانونه ورا وښتی دی. لدی کبله باید دپاکستان حکومت دی ژر خپل روابط دافغانستان سره بیا بر قرار کړی چه ددغه ځای خلک له اقتصادی مخمصی او تنګسی څخه خلاص شی.

**په پاکستانی بندیخانو کی دپښتو نستانی سیاسی بندیانو حالت ډیر زړه سوونکی دی:**

دمومندو دباړی په سیمه کی دملی عوامی ګوند رئیس ښاغلی بشیر احمد چه په دی ورځو کی دپاکستان له محبس نه دیو کال بندنه وروسته خوشی شوی دی دو ینا په ترڅ کی وویل چه دسکهر، مچ مونت ګمری، ملتان، حیدر آباد او بهاولپور اوهری پور په جیل خانو کی د پښتونستان دسیاسی بندیانو حالت ډیر خطرناک دی اوزیاتره ئی په ټول ټول ناروغیو اخته شوی دی.

ده وویل سربیره پردی چه دهغو سیمو آب وهوا دپښتونستان دسیاسی بندیانو دحال سره هیڅ ډول مطابقت نلری دغه محبسونه صحی شرطونه او آسانتیاوی نلری اودهیڅ بوناروغ بندی تداوی اوعلاج نه کیږی. علاوه پردی هر کله چه زیاتره سیاسی بندیان په سختو اوشاقه خدمتونو محکوم شویدی دبندیانو خپلوان نشی کولی چه دهغوی سره وګوری او تماس ورسره پیدا کړی. ده وویل په داسی حال کی چه په دغو محبسونو کی څو تنه مړه شویدی، دځینو نورو کسانو حالت هم د بحران آخر درجی ته رسیدلی دی او ځینی نورسیاسی بندیان یاد دماغ په خلل اخته شوی دی او یا ئی دستر ګو دید له لاسه ور کړیدی اویا کانړه شویدی. ښاغلی بشیر احمد وویل هغه کسان چه په جیل خانو کی مړی دزندان دچارو واکمن دمړه دخپلوانو سره دهغوی دمړی په وړلو کښی هیڅ ډول مرسته او همکاری نه کوی.

**دمردان دضلعی لارښوونکو او مشرانو دپاکستان له حکومت څخه په کلکه غوښتی چه ژر دپښتونستان سیاسی بندیان او مشران خوشی کړی:**

دخدائی خدمتګارانو دګوندیو شخصیت ښاغلی سالار جمعه خان چه له یو کال بندنه وروسته خوشی شویدی په یوه وینا کی ویلی دی چه دخدائی خد متګارانو لارښوونکی اووطن غو ښتونکی نور مشران په پاکستانی جیلونو کی اذیت اودسختو تکلیفو نوسره مخامخ دی او ددوی حالت دزیاتی خواشینی وړدی.

ده وویل دمچ په جیل کی یوشمیر زیات سیاسی بندیان په ټول ټول ناروغیو اخته شویدی اوپه تیره بیا دښاغلی حسین بخش کوثر حالت ډیر خطرناک دی.

سالار جمعه خان په پای کی وویل که دپښتونستان مشر ان ژر له جیلونو څخه خوشی نشی او زمونږ ملی غوښتنه ونه منله شی مونږ ټول به بیا جیلونو ته لاړشو.

بل رپوټ وائی چه دمردان دضلع لارښوونکو مشرانو دپاکستان له حکومت نه غوښتی دی چه ژر ټول سیاسی بندیان په تیره بیا دزیدی خان اوعبدالعزیز خان چه دکوټی په بندیخانه کی ئی صحی حالت بیخی ګډوډ دی اوژوندئی په خطر کی دی ژر خوشی کړی.

په غوښتن لیک کې ویل شوي دي چه د دغه خان سختې ناروغۍ په مرکزي محکوم پښتونستان کې په زرګونو خلك مضطرب کړي دي او بوزیات شمیر خلك ددې دپوښتنې دپاره دکو ټۍ خو اته روان شوي دي خو متاسفانه د محبس دچارو واکمن هیڅ یو تن ته اجازه نه ورکوي چه له دغه خان سره د نارو غۍ په بستره کې وګوري. بل رپوټ وائي چه دپاکستان دپارلمان غړي نوابزاده نصرالله خان دسیاسي بندیانو په باب کې دپاکستان داستعماري حکومت سیاست وغاندې اووي ویل چه د مخالفو ګوندو مشرانو په مقابل کې دپاکستاني زمامدارانو رویه دهند په نیمه قاره کې دانګلیس داستعمار دعصر دسیاست نه ډیره بده ده .

## د آزاد شمالي پښتونستان په تاریخي او ستره جرګه کې مهمې فیصلې وشوې:

دسرطان په ۳۱ نیټه په بالم بنار کې د برسدين، لرسدین، برامدك، لرآمدك مربوط دسالارزیو دعالمانو، ملکانو، مشرانو او دنورو ډېرو خلکو په ګډون ستره قومي جرګه دمتهشاه دښاغلي ملك سرور خان او دکشرۍ دښاغلي ملك ولایت خان په مشرۍ او بله جرګه داسد په دوهمه ورځ په ډنډو کې بابا کې دوازده ماموندو او سالارزیو دقبیلو دنمایندګانو او دنورو ډېرو کسانو په ګډون شوې وه عالمانو او قومي مشرانو په دغو جرګو کې جذابې وینا وې وکړې او په ګډه او اتفاق دپاکستان داستعماري حکومت دتیر یو په ضد د مبارزې ددوام په باب کې مهمې قومي فیصلې وشوې .

## دپښتونستان او پاکستان نامتو لیکوالو او دیبانو دپاکستان له حکومت څخه غوښتې دي چه دخلکو داساسي حقوقو مراعات وکړي:

دپښتونستان او پاکستان پنځوس تنو نامتو ادیبانو او لیکوالو دیو ګډ غوښتن لیك په ضمن کې دپاکستان له حکومت څخه غوښتي دي چه دبشر دحقوقو داعلامیې دمندرجاتو سره سم د خلکو داساسي حقوقو مراعات وکړي او خلکو ته حق ورکړي چه دبشري اساسي حقوقو ددفاع دپاره عدلي محکمو ته مراجعه وکړي شي. غوښتن لیك څرګندوي چه په اوسني حال او داوسني اساسي قانون له مخې عدلي محاکمې نشي کولای چه دبشري حقوقو دشکایت دموضوع په باب کې فیصله او غور وکړي په غوښتن لیك کې ویل شوي دي چه له هر ګوټ نه داوسنې حالت په ضد دخلکو داحتیاج غبږ پورته شوې دي او تر هغه وخته پورې چه دغه جائیزه غوښتنه ونه منله شي او سني بحران به ورځ په ورځ زیات شي. ددغه غوښتن لیك دلاسلیك کولو په جمله کې پاکستاني مشهور شاعر، ادیب د لینن دجائزې اخیستونکی ښاغلي محمد احمد فیض هم شامل دی. بل خبر وائي چه په محکوم پښتونستان او پاکستان کې بحران زیات سخت شوې دی. دپښتونستان دخلکو دملي نهضت دپرمختګ او دزرګونو سیاسي بندیانو دخلاصون دپاره خپل فعالیت زیات کړي دي او له بلې خوا داوسني اساسي قانون دلغو کولو دپارلمان حکومت دطرز دروګي کارکولو دسیاسي مشرانو دخوشي کولو او دبشري حقوقو دتضمین په غرض دختیز بنګال دخلکو مبارزې نورې هم زیاتې شوې دي. دپاکستان د حکومت دچارو واکمن ددغه بحران دسختیدو په اثر وار خطا شوي او په ختیز بنګال کې دکابینې یو وزیر په څرګنده ول خلك تهدید کړل چه که بحران دوام وکړي ددغه دکرارولو دپاره به بیا عسکري حکومت اعلام شي .

